

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# تاریخ

## دولسم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ . ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

---

مضمون: تاریخ
مؤلفین: د تعلیمي نصاب د تاریخ زده کړو د څانګې علمي او مسلکي غړي
اډیټ کوونکي: د پښتو ژبې د اډیټ د څانګې علمي او مسلکي غړي
ټولګی: دولسم
د متن ژبه: پښتو
انکشاف ورکوونکی: د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست
خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست
د چاپ کال: ۱۳۹۸ هجري شمسي
بریښنالیک پته: curriculum@moe.gov.af

---

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

# د څپرکي موخې

۱- د احمد شاه بابا واک ته د رسېدو څخه وړاندې د اقتصادي، سیاسي او ټولنیز حالت سره پېژندګلوي.

۲- د افغانستان بیاروغاونې سره پېژندګلوي.

۳- د احمد شاه بابا د شخصیت او د هغه د پوځي سوقیاتو په اړه معلومات لاس ته راوړل.

٤- د احمد شاه بابا د ځای ناستو او د هغوی د واکمنیو سره پېژندګلوي.

٥- د انګلیسانو د پالیسۍ په اړه معلومات او د هغوی پېژندګلوي.

٦- د خپل مینځي شخړو په اړه معلومات تر لاسه کول.

۷- د مشروطیت د خوځښت سره پېژندګلوي.

۸- د تاریخي نقشو د رسم کولو مهارت.

۹- په نقشو پوهېدل او د هغو پر مخ د پام وړ ځایونه ښودل.

۱۰- د سیاسي او کلتوري وضعیت تحلیل.

# د احمد شاه بابا واک ته تر رسېدو څخه وړاندې د افغانستان سیاسي، اقتصادي او ټولنیز حالت


بایزید انصاري

په دې لوست کې به سیاسي، ټولنیز، اقتصادي، خپلواکي غوښتونکي خوځښتونه او د خلکو په ویښونه کې د هغوی ونډه او همدارنګه د افغانستان د بیا رغاونې څخه مخکې معلومات درکړل شي.

د شپاړسمې پېړۍ په پیل کې د افغانستان په ننه او ګاونډیو هېوادونو کې سیاسي ناوړې پېښې رامنځ ته شوې، چې دغه ګډوډۍ د افغانستان په زیان تمامې شوې. د سلطان حسین بایقرا د مرګ ورسته په (۱۵۰۵میلادي کال) کې افغانانو خپل مرکزي دولت له لاسه ورکړ او تجزیه غوښتونکو په هر ګوټ کې پاڅونونه پیل او یو له بله سره په جګړو اخته شول. په (۱۵۰۱م.) کال شیباني دولت په ماورالنهر کې جوړ شو. په (۱۵۰۲م.) کال کې په ایران کې صفوي دولت او په هند کې مغولي دولتونه منځ ته راغلل، درې واړو نوي دولتونو د افغانستان په ختیځ، لوېدیځ او شمال کې په یرغلونو پیل وکړ او افغانستان تجزیه شو. مرکزي دولت له منځه لاړ او پوځي سوقیاتو افغانستان د جګړو په ډګر بدل کړ. یرغلګرو دولتونو د ډېرو ځمکو د نیولو لپاره تل یو پر بل یرغلونه کول. د هغوي د حملو له کبله زمونږ لوی او ودان ښارونه په کنډوالو بدل شول، اشغالګرو به ډول ډول ظلمونه کول، ورځ په ورځ د خلکو کرکه له هغوی څخه ډېرېدله او خلکو به پټه د خپلواکۍ لپاره د استعمار پر ضد مبارزه پیل کړه. د لومړي ځل لپاره صفویان د هرات، اندخوی، کندهار او بلوچستان ولایتونو له پاڅونونو سره مخامخ شول او افغانانو ډېر مقاومت وکړ. جګړې دومره کلکې وې، چې کندهار څو ځله د صفویانو لاسونو ته لوېده او بېرته به افغاني مبارزینو نیوه. صفویانو ددې پاڅونونو د غلي کولو لپاره له ډله ییزې وژنې او د شتمنیو له لوټولو څخه کار اخیسته، خو د مبارزینو پاڅونونه په ټوله معنا غلي نه شول او کله چې به د خپلواکۍ د مبارزینو خوځښت په یوه ځای کې غلی شو، په بل ځای کې به یې بیا په مبارزه پیل وکړ همداوه چې د خپلواکۍ خوځښتونه یو په بل پیسې رامنځ ته شول.

**د روښانیانو خوځښت**: د دې خوځښت لارښود با یزید انصاري چې په پیر روښان مشهور او د شیخ عبدالله انصاري زوی و چې د وزیرستان په (کاڼي ګرم) کې زېږېدلی دی. پیرروښان د مغلول د حکومت او د هغو خانانو د ظلم او استبداد پر ضد چې له مغولي دولت سره یې مرسته کوله، خلک یې مبارزې ته رابلل، پیرروښان یو متصوف او د طریقت خاوند و. لومړی یې د توچي په دره کې په تبلیغ پیل وکړ او وروسته یې تیرا خپل مرکز وټاکه. مغولي حاکمانو د هغه پر ضد اخوند درویزه ننګرهاری تحریک کړ او اخوند د رویزه د هغه تعلیمات، د اسلام د مبین دین پر ضد وبلل او هغه یې د (پیر تاریک) په نامه یاد کړ. په پای کې پیر روښان له مغلو سره په یوه جګړه کې ووژل شو. د هغه تر مرګ وروسته یې زوی جلا الدین رهبري پر غاړه واخیسته په (۱۶۰۰) میلادي کې یې له مغلو سره ډېرې جګړې وکړې.

په ختیځ کې له خیبر څخه تر تیرا او په سهیل کې یې کابل او غزنی ونیو. جلال الدین هم په جګړه کې ووژل شو. د جلال الدین تر مرګ وروسته د پیر روښان لمسی (حداد) د رهبرۍ مقام ته ورسېده او نوموړی د تیرا د سیمې په یوه جګړه کې ووژل شو. وروسته (عبدالقادر) د مشرۍ لپاره و ټاکل شو.

(بي بي علایي) د خپل زوی عبدالقادر سره مرسته کوله او ډېر ژر یې پېښور ونیو، خو ډېر وخت لا نه و تېر شوی، چې د قبایلو ترمنځ بې اتفاقي پیدا شوه. په (۱۶۳۶) میلادي کال کې مغلو عبدالقادر او د هغه مور ونیوله او هندوستان ته یې تبعید کړل او د روښان ملي خوځښت د مغلو او د سیمه ییزو حاکمانو د دسیسو له امله وځپل شو.

## د خوشحال خان خټک تر مشرۍ لاندې خوځښت

د ۱۶ م. پېړۍ په نیمایي کې د خټکو قبیله په تدریجي توګه د واک خاونده شوه او په سهیل کې یې د نورو قبایلو ترمنځ مهم ځای تر لاسه کړ. په (۱۵۸۰) میلادي کال کې جلا ل الدین محمد اکبر له اټک څخه تر پېښوره د سوداګریزې لارې د امنیت چارې د خټکو قبیلې ته وسپارلې او په بدل کې یې ورته له کاروانونو څخه د مالیې اخیستلو امتیاز ورکړ، همدغه امتیاز د خټکو او یوسفزو ترمنځ اختلاف رامنځ ته کړ. د شاه جهان د حکومت په وخت کې د خټکو د قوم مشري خوشحال خان ته ورکړل شوه، خوشحال خان د توري او سیاست خاوند او هم غښتلي شاعر و. خوشحال خان له مغولي پاچاهانو سره په لومړیو کې ښکې اړیکې درلودې، خو وروسته یې اړیکې د مغولو له دربار سره خرې پرې شوې، اورنګزیب خوشحال خان ونیو او بندي یې کړ، څلور کاله وروسته له زندان څخه خوشې شو او بیرته یې د خوځښت مشري په غاړه واخستله، په ۱۶۷۸ - ۱۶۷۰م. کال کې ۴۰ زره مغولي پوځیان له افغانانو سره د تاترې په جګړه کې ووژل شول تر دې ماتې وروسته مغولي حکمرانانو د خوشحال خان یو زوی هند ته تبعید او وروسته مړ شو او تر دې دردوونکې پېښې وروسته



خوشحال خان خټک

خوشحال خان هم په (۷۸اته اویا) کلنۍ کې مړ او د ده له وصیت سره سم د خټکو په غرونو کې د دښمن له سیوري څخه لرې خاورته وسپارل شو.

## د میرویس نیکه پاځون



میرویس نیکه

په ۱٦ مه میلادي پېړۍ کې د بهرنیانو د یرغلوو په پایله کې افغانستان تجزیه شو، لوېدیزې او سهیلي برخې د ایران صفویانو، ختیځې برخې د هند مغولو او شمالي برخې د ماورالنهر شیبانیانو ونیولې، د مرکزي حکومت نشتوالي او د پردیو تسلط د ټولنې د اقتصادي ټیټوالي او نا انډولیو(نابرابري) سبب شو چې په خلکو کې یې کرکه او د خپلواکۍ سره مینه پیاوړې کړه، تر څو چې په (۱۷۰۹) میلادي کال کې یې د میرویس نیکه په مشرۍ خلکو په خپل پاځون سره د صفویانو واکمنۍ او د کندهار د والي گرگین ظلمونو ته د پای ټکی کېښود او په کندهار کې یې خپلواک دولت جوړ کړ، خو دغه دولت له ۳۰ کلونو څخه ډېر دوام ونه کړ، ترڅو په ۱۸اتلسمه میلادي پېړۍ کې یو ملي دولت د افغانستان په نامه د لوی احمدشاه بابا په مشرۍ جوړ شو.

## د احمد شاه بابا واک ته تر رسېدو څخه وړاندې د افغانستان ټولنیز حالت

تر دوه نیمو پېړیو پورې د افغانستان تجزیې او وېش نه یوازې دا چې په افغانستان کې د ودې اوپرمختګ بهیر ځنډمن کړ، بلکې د مادي او معنوي تنزل او انحطاط دوره یې په هېواد کې منځ ته راوړه. او هېواد له رکود سره مخامخ شو. د افغانستان تجزیه داسې یو لوی آفت و چې په تدریجي توگه یې هویت، وحدت او ملي خپلواکي له منځه وړله، په دې موده کې افغانستان مرکزي دولت او ملي خپلواکي او هم په کرنه او سوداگرۍ کې نسبتاً ښه اقتصاد له لاسه ورکړ. د هرات مکتب چې د تیموریانو په وخت کې یې په ادب، کلتور او د علومو په پراختیا کې ښه رول درلود، له منځه تللی و. مدرسې او روزنیز مرکزونه وتړل شول، نو ځکه د استادانو او پوهانو لپاره کوم هڅوونکی مرکز نه و، له دوی څخه ډېر شمېر نورو هېوادونو او په ځانگړې توگه هند ته ولاړل.

## د احمدشاه بابا قدرت ته تر رسېدو څخه وړاندې د افغانستان اقتصادي حالت

مخکې له دې څخه چې افغانستان د صفویانو، شیبانیانو او د هند د مغولو تر حملو لاندې راشي، د افغانستان اقتصادي حالت په ټول هېواد کې نسبتاً ښه و، که څه هم خلکو ساده او بدوي ژوند درلود. کرنې، مالدارۍ او صنایع درې واړه د افغانستان د اقتصاد مهمې برخې وې. د افغانستان خاوره او اقلیم د نباتاتو د کر لپاره مناسبه وه. یو شمېر بزگرانو خپله ځمکه لرله خو ډېرو له ځمکه لرونکو څخه

ځمکه په اجاره او بزګرۍ اخیسته. د بندونو او ویالو په برخه کې ډېره پاملرنه کېدله، دولتونو د کرنې د پراختیا په برخه کې ځانګړې پاملرنه لرله، ځکه چې د دولت د عایداتو مهمه برخه د بزګرۍ له مالیاتو څخه جوړېدله.

**مالداري**: د مالدارۍ په برخه کې هم ډېره پاملرنه کېده او ډېرو خلکو په مالدارۍ پورې تړاو درلود او د څارویو ډولونه د خلکو په وسیله تربیه او تکثیرېدل، د څارویو محصولاتو د ملي اقتصاد مهمه برخه جوړوله.

**صنایع**: د صنایعو په برخه کې دولت تل صنعت کاران تشویقول، د سرو زرو، سپینو زرو، اوسپنې ، مسو او سربو غیر فني استخراج کېده او صنایعو یوه اندازه پرمختګ کړی و.

**سوداګري**: یو شمېر ځانګړو ولایاتو سوداګریز اهمیت درلود. مواصلاتي لارو سیمې یو له بله سره نښلولې او سوداګریز توکي د پېرودلو او پلورلو لپاره انتقالېدل. د هندوستان، چین ، ایران او ماورالنهر سره واردات او صادرات تر سره کېدل. یو وخت کندهار او هرات د افغانستان له غوره سوداګریزو مرکزونو څخه ګڼل کېدل. د (۱۶مې)میلادي پېړۍ په لومړیو کې هر کال ۳۰ زره بار اوښان له کندهاره تېرېدل او ګمرکي عواید یې دولت ته ورکول کېدل. د کندهار سوداګریز ارزښت له ستراتېژیک اهمیت څخه لږ نه و.

یو وخت کندهار د هند د دروازې په نامه یادېده ، په خواشینۍ سره د افغانستان تر تجزیې او نیولو وروسته اقتصادي حالات کړکیچن شول. د خلکو ستونزې ورځ په ورځ ډېرېدلې.

د پوځیانو د لښکر ایستنې لګښتونه او ملاماتونکې مالیې چې د هغوی له خوا وضع شوې وې خلکو یې د ورکړې توان نه درلود. دغې وضعې تر اتلسمې میلادي پېړۍ د احمد شاه بابا د مرکزي دولت د جوړیدو تر مهاله دوام درلود.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو وویشل شي. لومړنۍ ډله دې د احمد شاه بابا واک ته رسیدو د مخه پر ټولنیز حالت او دویمه ډله دې پر سیاسي حالت یو له بله سره خبرې وکړي.



## پوښتنې

۱. د پیر روښان د خوځښت موخې کومې وې؟
۲. د پیر روښان تر وژلو وروسته د روښاني خوځښت مشري چا کوله؟
۳. خوشحال خان خټک چا زنداني کړ؟
٤. د میرویس خان هوتک پاخون په کوم کال کې بریالی شو او کومې پایلې درلودې؟



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده کوونکي دې د احمدشاه بابا واک ته تر رسیدو څخه وراندې د افغانستان د اقتصادي حالت په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې وواییي.

# احمدشاه بابا او د مرکزي دولت ټينګښت


احمد شاه بابا

د احمد شاه بابا واک ته د رسېدو څرنګوالی، د هغه اداري نظام او مهمي کړنې په دې لوست کې تر بحث لاندې نيول شوي دي.

کله چې ابدالي احمدخان د يو مرکزي دولت د ټينګښت لپاره هڅه کوله افغانستان په لاندې وضعيت کې پروت و. د پرديو قواو په وسيله د افغانستان نيول او تجزيه، د مرکزي حکومت نشتوالی، د اقتصاد رکود، ناوړه ټولنيز حالت او په ګاونډيو دولتونو کې سياسي بدلونونو په افغانستان کې د يوه مرکزي دولت د جوړولو لپاره لار هواره کړې وه، د نادر افشار تر وژلو وروسته د هغه په لوی پوځ کې ګډوډي پيدا شوه. د يادونې وړ ده چې د نادر افشار د پوځ يوه برخه له افغانانو جوړه وه. د هغوی شمېر څلور زره غلجيانو، دولس زره سدوزيانو او ازبکو ته رسېده چې د عمومي قوماندان نورمحمد خان غلجي او احمدخان په وړانديز افغاني قطعات کندهار ته راستانه شول. وروسته نورمحمد خان د غلجيو ، ازبکو، ابداليو او هزاره ګانو له مشرانو څخه د يوې قومي لويې جرګې د جوړولو غوښتنه وکړه، تر څو د جرګې له غړيو څخه يو کس د مشر يا پاچا په توګه وټاکي او د افغانستان د چارو د اداري لپاره يو حکومت جوړ کړي، د داسې جرګې جوړولو ته د قومونو ټولو مشرانو غاړه کېښوده.

د شير سرخ د مزار جرګه دکندهار د نادر آباد په نظامي کلا کې جوړه شوه او نهه ورځې يې دوام وکړه.

د جرګې غړي وروستۍ پرېکړې ته نه رسېدل، ځکه چې هر مقتدر خان سلطنت غوښت او یوازې هغه څوک چې غلی و، ابدالي احمدخان و او دا ځکه چې احمدخان د ابدالي قبیلې څخه و او د شمېر په لحاظ له نورو څخه کم وو. په پای کې په نهمه ورځ د جرګې غړیو داسې پرېکړه وکړه، چې د جرګې غړي دې یو څوک د حکم په توګه معرفي کړي، تر څو یو تن د مشر یا پاچا په توګه وټاکي. یاد شوی کس یو روحاني سړی و، چې په یوې قبیلې پورې یې تړاو نه درلود او ان د کندهار اوسېدونکی هم نه و. دا هماغه کابلی صابر شاه د نامتو صوفي (لایخوار) زوی و، چې د کندهار ټولو خلکو پر هغه باور او هغه ته یې ارادت درلود. دغه صوفي سیاستوال له خپله ځایه پاڅېد، ابدالي احمدخان یې معرفي کړ او د غنمو څو وږي یې د شاهي تاج پر ځای د هغه په پګړۍ کې وټومبل. لویو خانانو له ناچارۍ احمد خان ته بیعت وکړ او هغه یې د افغانستان د پاچا په توګه قبول کړ.

احمد خان د زمان خان ابدالي زوی او د دولت خان سدوزي لمسی و مور یې د عبدالغني خان الکوزي خور وه، چې د نادر افشار په وخت کې د کندهار پخواني والی و. ابدالي احمد خان په ۱۷۲۲ میلادي کال په هرات کې وزېږېد، که څه هم د هغه د زېږېدو د ځای په برخه کې اختلاف شته او هغه داسې چې یو شمېر تاریخ پوهان د هغه د زېږېدو ځای هرات او یو شمېر یې ملتان ګڼي، ځکه له ډېرو وختونو راهیسې په ملتان کې یو کور دی، چې سدوزیان یې هغه د احمد خان د زېږېدو ځای ګڼي.

احمد خان ابدالي د ځوانۍ پر وخت د نادر افشار په پوځ کې داخل شو. ډېر ژر نادر افشار ته د هغه پوهه او وړتیا معلومه شوه او هغه یې د افغاني او ازبکي قطعاتو مشر وټاکه. د نادر افشار تر وژلو وروسته د ایران وضع ګډه وډه شوه. په شمال کې د جنیدي دولت مخ په زوا ل شو او په هند کې د مرهټه دولت د "سواجي" په مشرۍ منځ ته راغی، چې د اورنګزیب تر مرګ وروسته د هند بابري دولت ددې توان نه درلود، چې د افغانستان په کورنیو چارو کې مداخله وکړي، یاد شوي بدلونونه ددې سبب شول، چې احمد شاه بابا ډاډمن او خاطر جمع کړي او وېې کړای شول چې له دغو حالتونو څخه د دولت په جوړولو او د افغانستان له لاسه تللو سیمو د لاس ته راوړلو په برخه کې ډېره ګټه پورته کړي. احمد شاه بابا په دې پوهېده چې د خپلو ګټو د خوندېتوب لپاره د لویو ملاکینو او قبایلي رئیسانو شتون د یوه با ثباته دولت د ټینګښت لپاره ښایي هغه ته ستونزې جوړې کړي، ددې لپاره چې پر دغو ستونزو بریالي شي، هغوی یې په دولتي او پوځي چارو کې داخل او په جرګو کې یې غړیتوب ورکړ، د هغوی نظرونو ته یې ارزښت ورکړ او په سفرونو کې یې هم مصروف کړل. وروسته له هغه چې احمد شاه بابا سلطنت ته ورسېد لاندې ټکي یې د یوه ټینګ نظام د جوړولو لپاره د مهمو موخو په توګه وټاکل. لومړنۍ موخه یې د یوه مرکزي حکومت د



د احمد شاه بابا د وخت یوه ودانۍ

جوړولو لپاره د ملي وحدت رامنځ ته کول و. دویمه یې دا وه، د افغانستان طبیعي سرحدونه چې د آمو له سیند څخه د سند تر سینده پورې وو تامین کړي او دریمه موخه یې د گاونډیو هېوادونو پر وړاندې د دفاع تاکل و. ددې لپاره چې داخلي اختلافات له منځه یوسي او په دولتي چارو کې له خلکو مشوره واخلي، د لومړي ځل لپاره یې یوه دایمي جرگه جوړه کړه چې د شیر سرخ د مزار د جرگې ځینې غړي یې په کې هم شامل کړل.

د یوې ښې ادارې د لرلو لپاره یې لومړی اداري او پوځي تشکیلات رامنځ ته کړل او یاد شوي تشکیلات یې د میرویس نیکه د تشکیلاتو اقتباس و چې غوښتل یې د هغه ناتمامه طرح بشپړه کړي.

احمد شاه بابا د ټولو اداري، قضایي او نظامي تشکیلاتو په سر کې د قاطع نظر واک درلود. په دې معنا چې پخپله پاچا د ټولو چارو اداره په لاس کې درلوده او په مرکز او ولایتونو کې یې هم اداري او پوځي تشکیلات جوړ کړل. که څه هم احمد شاه بابا د خپل ۲۶ کلن سلطنت په موده کې د مرکزي حکومت د ټینگښت، اداري اصلاحاتو, او همدارنگه پوځي سفرونو د هیواد په د ننه او بهر کې دومره مصروف کړی و چې ویې نه شو کړای چې د اقتصاد د پرمختیا، ښوونې او روزنې او کلتور په برخه کې ځانگړې پاملرنه وکړي، خو له دې سره سره د هغه د سلطنت په وخت کې ځینې کارونه لکه د

کندهار او تاشقرغان د ښارونو جوړونه او د ده خپله مقبره په کندهار کې د مبارکي خرقې په خوا کې چې د هغه وخت د معمارۍ د سبک استازېتوب کوي، تر سره شول. احمد شاه بابا له عرفان او ثقافت سره ډېره مينه درلوده چې يو شمېر کتابونه د هغه د سلطنت پر وخت وليکل شول چې کولای شو د کتابونو او ليکوالو نومونه يې يادکړو: تاريخ احمد شاهي په دوه ټوکه کې ، د هغه د در بار د منشي محمود الحسيني په وسيله، "تواريخ حافظ رحمت خاني" د مير محمد فاضل په وسيله طبي کتاب "بحر الفوايد" چې قاضي دل محمد افغان ليکلی او "خلاصة الانساب" د پښتنو د نسب په برخه کې چې حافظ رحمت خان بړيخ ليکلی او همدارنګه لومړنی موزيم د "بيت الاشرف" په نامه په کندهار کې جوړ شو. احمد شاه بابا په کندهار، هرات او پېښور کې لويې مدرسې جوړې کړې چې تر ټولو مشهوره يې د "کندهار زړه جامع مدرسه" وه او همدا شان د احمد شاه بابا ديوان ددې استازېتوب کوي چې هغه له عرفان او تصوف سره مينه درلوده.

##  په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړنۍ ډله دې قدرت ته د رسېدو په څرنګوالي او دويمه ډله دې د مرکزي حکومت پر ټينګښت يو له بل سره خبرې وکړي.

##  پوښتنې

١. احمدشاه بابا په کومه جرګه کې د مشر په توګه وټاکل شو ؟

٢. احمدشاه بابا د دندو په سرته رسولو کې کوم اصل په پام کې نيوه؟

٣. د احمدشاه بابا د معمارۍ د يو څو بېلګو نومونه واخلئ.

##  له ټولګي څخه د باندې فعاليت

زده کوونکي دې د احمدشاه بابا د فرهنګي وضعيت په اړه له فرهنګي شخصيتونو او خپلو ښوونکو څخه معلومات ترلاسه او په ټولګي کې دې ووايي.

## د احمد شاه بابا پوځي سوقيات



د افغانستان نقشه د احمد شاه بابا په وخت کې

په دې لوست کې به د احمد شاه بابا د واکمنۍ په وخت کې د هغه د پوځي سوقياتو او د هغو د پايلو او لاسته راوړنو په اړه معلومات وړاندې کېږئ.

کله چې احمدشاه بابا واک ته ورسېد، له هغه څخه وړاندې افغانستان د پرديو قواو په وسيله تجزيه او نيول شوی و. ځکه نو احمد شاه بابا د پخوانيو له لاسه تللو سيمو د لاسته راوړلو او د طبعي سرحدونو د ټاکلو لپاره يو لړ سفرونه او پوځي سوقيات پيل کړل چې په دې لوست کې به په لنډه توګه معلومات ترلاسه کړئ.

### لومړی سفر (۱۷۴۷- ۱۷۴۸ ميلادي)

سپاه سالار خان جهان خان د غزني، کابل، جلال آباد له لارې د سند تر سواحلو پورې ورسېد. ناصر خان د کابل او پېښور والي چې لا په قدرت کې و، غوښتل يې چې د ايماقو او هزاره قواوو په مرسته له افغاني قواوو سره وجنګيږي، خو ايماق او هزاره قواوو داکار ونه کړ. احمد شاه بابا هم د ختيځ په لور حرکت وکړ او د لارې په اوږدو کې د خلکو له هر کلي سره مخامخ شو. د پنجاب والي له احمد شاه بابا سره په جګړه کې مقاومت ونه کړای شو او لاهور ته وتښتېد. احمد شاه بابا لاهور ونيو، د هند

شاهنشاه د افغانانو د پر مختتک څخه په ویره کې ولویده او مغولي احمدشاه خپل ولیعهد, صدر اعظم قمرالدین د ډیرو قواو سره د مقابلې لپاره ولېږه او افغاني قواوې د هندي توپخانې تر اور لاندې راغلې ، چې ډېر تلفات یې افغانانو ته واړول. احمد شاه بابا اړه شو چې پنجاب «مېرمنو» او ملتان زاهد خان ته وسپاري او پخپله د هغه شورش د غلي کولو لپاره چې د هغه د وراره لقمان خان ابدالي په وسیله رامنځ ته شوی و، کندهار ته ستون شو.

## دویم سفر

د ۱۷۴۹م کال په لومړیو کې احمد شاه بابا هرات ته سفر وکړ. درې کسه نادري حاکمان احمد شاه بابا ته تسلیم نه شول او د هغوی له ډلې څخه درویش خان هزاره خپله پلوي له احمدشاه بابا څخه اعلان کړه او هرات د احمد شاه بابا په وسیله ونیول شو. احمد شاه بابا درویش خان د هرات والي وټاکه. احمد شاه بابا خپل صدراعظم شاه ولي خان ته حکم وکړ چې شمالي سیمو ته سفر وکړي، د جنیدي د حکومت تر انحطاط وروسته مرو، فاریاب، جوزجان، بلخ، خلم، بدخشان او تخارستان خپلواکه شوي وو او شاه ولی خان یادې شوې سیمې یو په بل پسې ونیولې او له مرکزي حکومت سره یې یو ځای کړې.

## دریم سفر

د ۱۷۵۰ میلادي کال په پسرلي کې «عباس قلي بیات» په نیشاپور کې بغاوت وکړ او احمدشاه بابا نېشاپور ته مخه وکړه. عباس قلی بیات د احمدشاه بابا له پوځ سره په جګړه کې ماتې وخوړه او بندي شو. وروسته احمد شاه بابا هغه وباښه او د دویم ځل لپاره یې د نېشاپور حاکم وټاکه ، کله چې احمد شاه بابا هرات ته ورسېد، خبر شو چې میر علم خزیمه پر مشهد یرغل کړې ده «ړوند شاهرخ» د نادر افشار کړوسی چې احمد شاه بابا د مشهد والي ټاکلی و، د میر علم خزیمه په وسیله بې واکه شوی و. احمدشاه بابا مشهد ته ولاړ، میر علم ته یې ماتې ورکړه او د شاهرخ امنیت یې بیا تامین کړ.

## څلورم سفر

په (۱۷۵۱) میلادي کال کې د پنجاب والي مېرمنو چې مخکې د مالیاتو په ورکړه ژمن شوی و، انکار وکړ او احمد شاه بابا خپل استازی هغه ته واستاوه، خو د پنجاب والي د مالیې له ورکړې څخه ډډه وکړه، احمد شاه بابا ختیځ ته سفر وکړ، د پنجاب والي مېرمنو سپاه سالار «ګورامل» د احمد شاه بابا سره د

جګړې د مقابلې لپاره ولېږه. جګړه چې د «شاه درې» په سیمه کې پېښه شوه ، ګورامل په کې ووژل شو او لښکر يې ماتې وخوړه. مېرمنو له احمدشاه بابا څخه بښنه وغوښته او احمد شاه بابا هغه وباښه او بیا يې مېرمنو د پنجاب والي وټاکه. مېرمنو ژمنه وکړه چې د پنجاب او ملتان ولایتونه به د افغانستان يوه برخه وي. وروسته احمد شاه بابا یاد شوی ژمنلیک د خپل استازي په وسیله د مهر او تأیید لپاره د ډهلي دربار ته واستاوه او په دې ترتیب پنجاب، ملتان او سند په افغانستان پورې وتړل شول. د ۱۷۵۱ میلادي کا ل په پای کې احمد شاه بابا یو لښکر د خواجه عبدالله په مشرۍ د «اټک او حسن ابدال» له لارې د کشمیر د یو ځای کولو لپاره هغې سیمي ته واستاوه، تر څو د کشمیر خواجه خپل مناسبات د هند له دولت څخه پرې او خپل یو ځایوالي له افغانستان سره اعلان کړي.

## د ختیځ سفر ۱۷۵۶ - ۱۷۵۷ میلادي

په (۱۷۵۳) میلادي کال کې د پنجاب والي مېرمنو مړ شو. احمد شاه بابا پنجاب ته سفر وکړ، د مېرمنو نابالغه زوی محمد امین يې د والي په توګه وټاکه. د محمد امین مور (بېګم مغلاني) د زوی پر ځای ولایتي چارې پرمخ وړلې. په همدې وخت کې د ډهلي دربار د هند د صدراعظم (عماد الملک غازي الدین) د لاس اله شوی و او غازي الدین د هند پاچا احمد شاه د محمد شاه زوی لرې او پر ځای يې دویم عالمګیر د ډهلي پر تخت کېناوه. بېګم مغلاني يې بندۍ کړه او د پنجاب ولایت يې ادینه بېګ ته وسپاره. عالمګیر (نجیب الدوله) د سهارنپور د والي په مشرۍ لښکر د احمدشاه د مقابلې لپاره واستاوه، خو نجیب الدوله پرته له جګړې له احمد شاه بابا سره یو ځای او عالمګیر اړ شو چې له ډهلي سره نږدې له احمد شاه بابا څخه هر کلی وکړي. احمدشاه بابا د اړیکو د ساتنې لپاره د عالمګیر وریره شهزاده تیمور ته په نکاح کړه او وروسته هېواد ته ستون شو.

## سویل ته شپږم سفر

کله چې احمد شابابا له هند څخه افغانستان ته راغی، افغاني سردارانو د ابدالي دولت د غرور او قدرت په مټ د پنجاب پر بزګرانو درنې مالیې کېښودې چې په دغه کار سره پاڅونونه رامنځ ته شول او ډېر ژر سیکانو ددې شورشونو مشري په غاړه واخیسته. په امرتسر کې يې په تشکیلاتو پیل وکړ چې په پای کې د افغانانو او سیکانو ترمنځ جګړه رامنځ ته شوه.

د هند سپاه سالار نجیب الله یوسف زی وتښتېد، جټانو او راجپوتانو له مرهټه وو سره اتحاد وکړ. د هند پخواني صدراعظم غازي الدین په پنجاب کې سیکان د افغانانو پر ضد تحریک کړل، ادینه بېګ

د سیکانو په اتفاق په (جلندر) کې ډېر افغانان ووژل. د ۱۷۵۸ م. کال د اپریل په میاشت کې افغاني قواوې له ماتې سره مخامخ او عبدالصمد یې بندي کړ. شهزاده تیمور او سپاه سالار سردار جهان خان مقاومت ونه شو کړای، تر اتک پورې شاتګ یې وکړ. پاڅون کوونکو پرته د (اودی) د ټول هند حکمراني یې ترلاسه کړه. احمد شاه بابا په بېړني توګه د هند قضیه راتلونکي ته پرېښوده. ځکه چې پخپله د بلوچستان په نا آرامیو کې مصروف و. د شاه ولي خان په مشرۍ یې پوځ بلوچستان ته ولېږه او وروسته له جګړې د شورشیانو مشر نصیر خان بلوچ ماتې وخوړه او د سولې غوښتنه یې وکړه چې احمدشاه بابا وباښه او بلوچستان د پخوا په څېر د افغانستان یوه برخه شوه. احمدشاه بابا د نورالدین په مشرۍ لښکر پنجاب ته ولېږه او پخپله کندهار ته راغی، تر څو سیکانو او مرهټه وو سره د حساب لپاره خپلې قواوې راټولې کړي.

## اووم سفر- د پاني پت جګړه ۱۷۶۰- ۱۷۶۱ میلادي

په ختیځ کې د احمدشاه بابا دا سفر د ډېر اهمیت وړ دی، ځکه په ۱۷۵۸ میلادي کال په هند کې ډېرې مهمې پېښې رامنځ ته شوې. لومړی د پنجاب سیکانو پاڅون وکړ. ور پسې مرهټیان د هند مرکزي او شمالي برخو ته داخل شول او دریم دا چې اسلامي حکومت چې مسلمانانو جوړ کړی و، له منځه لاړ. په هغه وخت کې چې احمدشاه بابا د نصیرخان بلوچ په ټکولو مصروف و، د مرهټیانو مشر (سند یا) مرکزي هند ته ورسېد. راجپوټانو او جټانو سره یې اتحاد وکړ او سندیا د پنجاب لوري ته حرکت وکړ. ادینه بېګ هم ور سره یو ځای شو او پنجاب یې ونیو. شهزاده تیمور او سردارجهان خان پېښور ته شاتګ وکړ.

کله چې احمدشاه بابا له بلوچستان څخه ډاډمن شو، د دېرش زره پوځیانو سره د بولان د درې له لارې سند ته ورسېد او له شهزاده تیمور او جهان خان سره یو ځای شو. د پنجاب لوري ته یې حرکت وکړ ، سندیا او غازي الدین چې څنګه د احمدشاه بابا له حرکت څخه خبر شول، له نجیب الدوله سره یې سوله وکړه او د ډهلي لوري ته روان شول. په ډهلي کې یې دویم عالمګیر وواژه او کرِوسی یې پاچا کړ. په دغه وخت کې احمدشاه بابا له دریو قواو سره مخامخ شو. لومړنۍ د سندیا قوا، د ډهلي د لارې په اوږدو کې، دویمې قوې په (هولګر) پورې اړه درلوده د جمنا په کیڼ لوري کې ځای پر ځای وه او دریمه قوه د ( جنګورا ) او غازي الدین وه.

څنګه چې جګړه پیل شوه، درې ګونه قوا وې د احمدشاهي ځواک پر وړاندې ماتې وخوړه، کله چې غازي الدین او جنګورا د سندیا له ماتې خبر شول ډهلی یې پرېښود او وتښتېدل.

د مرهټيانو مشر(بالا باجي) د مرهټه وو ټولو مشرانو ته خبر ورکړ چې نوي لښکر ترتيب کړي او راجپوټانو له مرهټه وو سره اتحاد وکړ چې شمېر يې دوو لکو ته رسېده، په داسې حا ل کې چې د احمد شاه بابا د پوځيانو شمېر ٦٠ زره وو. د پاني پت په ډګر کې ډېره لويه جګړه ونښته. افغانان فاتح او مخالفو قواو ماتې وخوړه. احمدشاه بابا ډهلي ته داخل شو. د ډهلي تخت يې شهزاده علي ګوهر، سياسي او اداري چارې يې شجاع الدوله او پوځي چارې يې نجيب الدوله ته وسپارلې او پخپله کندهار ته راستون شو.

## اتم سفر- ١٧٦٢-١٧٦٣ ميلادي

په ١٧٦٢ م کال کې د پنجاب سيکانو د «جياسينګ» په مشرۍ د دويم ځل لپاره په شورش لاس پورې او امرتسر يې په يوه پوځي مرکز تبديل کړ. په کشمير کې يې افغاني ضد تبليغات پيل کړل او د لاهور ښار يې ونيوه. احمدشاه بابا د پنجاب لوري ته حرکت وکړ، د سيکانو اويا زره لښکر يې تارومار کړل او سردار نجيب الدوله ته يې لارښوونه وکړه چې د «سر هند» او کشمير امنيت ټينګ کړي.

## نهم سفر - ١٧٦٣ ميلادي کال

د سيکانو ترماتې وروسته احمدشاه بابا کندهار ته راستون شو. د هغې ناروغتيا له امله چې ور پېښه شوې وه، د نوموړي کال تر پايه يې د هېواد د ننه او بهر ته سفر ونه کړ، په دې موده کې سيکانو له جټانو او مرهټه وو سره اتحاد وکړ. په پنجاب او سر هند يې د ٤٠ زره پوځيانو په وسيله يې حملې پيل کړې او د ډهلي د نيولو نيت يې درلود. احمدشاه بابا په ١٧٦٣ م. کا ل کې پنجاب ته لښکر ولېږه او شورشيانو ته يې ماتې ورکړه او په غرونو کې يې خپاره کړل.

د ١٧٦٣ م. کال په پای کې احمدشاه بابا خپل صدراعظم شاه ولي خان بلخ ته ولېږه تر څو د جنيدي سلسلې له اخرني پاچا عبدالعزيز خان سره خبرې وکړي. په مذاکراتو کې داسې يو تړون لاسليک شو چې د آمو سيند د پخوا په څېر د افغانستان او بخارا په منځ کې سرحدي کرښه وټاکل شوه. وروسته شاه ولي خان بدخشان ته ستون شو. خرقه مبارکه يا د حضرت پيغمبر(ﷺ) کالي يې د فيض آباد له ښار څخه له ځانه سره کندهار ته راوړه.

## لسم سفر- ١٧٦٩ ميلادي کال

د ١٧٦٩ م. کال په نيمايي کې د نصرالله ميرزا او نادر ميرزا د نابينا شاهرخ د زامنو ترمنځ د قدرت د لاس ته راوړلو پر سر اختلاف پيدا شو او په خراسان کې حالت د خرابۍ لور ته روان شو. احمدشاه بابا

مشهد ته سفر وکړ. نصر الله میرزا د ایران له پاچا کریم خان زند سره اړیکې ټینګې کړې وې. د (تون او طبس) حاکم علیمراد شورش او سرکشي وکړه. احمدشاه بابا مشهد محاصره کړ او سپاه سالار جهان خان او د بلوچستان والي نصیر خان یې د علیمراد د ټکولو لپاره مؤظف کړل او علیمراد په جګړه کې ووژل شو. نصرالله میرزا تسلیم شو او شاهرخ خپله لور د احمدشاه بابا زوی ته په نکاح کړه.

احمدشاه بابا د نادر افشار په درناوي خراسان شاهرخ ته وسپاره او پخپله کندهار ته راغی او دا د احمدشاه بابا آخرنی سفر و.

احمدشاه بابا تر ۲۶ کاله پاچاهۍ وروسته د سرطان په ناروغۍ اخته شو او په پنځوس کلنۍ کې یې له دې فاني نړۍ سترګې پټې کړې. له وصیت سره سم په ۱۷۷۳ میلادي کال کې د خرقې مبارکې ترخنګ خاورو ته وسپارل شو. احمد شاه بابا د افغانستان خاوره یو موټې او متحده کړه او خلکو د نېکو اخلاقو، تقوی، مهرباني او د هغه د نېکو خدمتونو له امله ورته د (بابا) لقب ورکړ.

احمدشاه بابا په خپل سیاسي او پوځي ژوند کې له لسو څخه ډېر هند، خراسان او د افغانستان شمال ته سفرونه وکړل ، کله چې په ۱۷۷۳ میلادي کا ل کې یې له نړۍ سترګې پټې کړې نو لویه امپراتوري یې په میراث پرېښوده چې په ختیځ کې تر سرهند، لوېدیځ کې تر سبزار او مشهد په شمال کې د آمو تر سینده او په سویل کې یې د عربو تر سمندرګي پورې پراخوالی درلود.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو وویشل شي. لومړنۍ ډله دې د پوځي موخو او دویمه ډله دې د احمدشاه بابا د پوځي سوقیاتو د پایلو په اړه یو له بل سره خبرې وکړي.

### پوښتنې

۱. د احمدشاه بابا لومړنی سفر په کوم کال پیل او کومې پایلې یې درلودې؟

۲. احمدشاه بابا د هیواد لویدیځ ته څو ځله سفر کړی، لاس ته راوړنې یې وواياست؟

۳. د احمدشاه بابا هند ته پوځي سفر تر ټولو مشهور سفر څه نومېده او هم وواياست چې کومې پایلې یې درلودې؟

### له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده کوونکي دې له مشرانو او فرهنګیانو څخه د احمدشاه بابا د ژوند د پای په وختونو کې د افغانستان د جغرافیوي قلمرو په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې ووايي.

# د احمد شاه بابا ځايناستي
# د تيمورشاه پاچاهي (۱۷۷۳ - ۱۷۹۳ ميلادي)



د احمد شاه بابا څخه وروسته د هغه ځای ناستو او ورثې وکولای شول هغه لويه امپراتوري چې له هغه څخه په ميراث پاتې وه وساتي په دې لوست کې به يې په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

تيمورشاه د احمد شاه بابا زوی په ۱۷٤۲ميلادي کال په مشهد کې زيږيدلی دی. هغه د زده کړو خاوند او د دري ژبې شاعر و. د احمدشاه بابا د مړينې پر وخت کې يې د هرات د والي په توګه دنده درلوده. احمدشاه بابا هغه په خپل ژوند کې وليعهد يا ځايناستی ټاکلی و . د احمدشاه بابا تر مړينې وروسته شهزاده سلېمان د خپل خسر صدراعظم شاه ولي خان په مرسته د پاچاهي اعلان وکړ. کله چې شهزاده تيمور له هراته کندهار ته راغی، شهزاده سليمان يې بندي او شاه وليخان يې وواژه. په دې توګه تېمورشاه پاچاهي ته ورسېد. تيمورشاه د خپلې پاچاهۍ په لومړي کال پايتخت له کندهاره کابل ته انتقال کړ .

تيمور شاه خو داخلي او بهرني پاڅونونه په بريالیتوب سره له منځه يووړل. تيمورشاه د خپلې پاچاهۍ په ۲۰ کلنه موده کې وکړای شول چې هغه سيمې چې له پلاره يې ورته په ميراث پاتې وې وساتي. د هغه تر مرګ وروسته د هغه د زامنو بې اتفاقي، د ايران لاسوهنې او د روسانو او انګليسانو سيالۍ د افغاني لويې امپراطورۍ د سقوط سبب شوې، تيمورشاه په ۱۷۹۳م. کا ل کې مړ او د کابل په چهارباغ کې خاورو ته وسپارل شو.

## د زمان شاه پاچاهي (۱۷۹۳ - ۱۸۰۱ میلادي)

د تیمورشاه د زامنو ترمنځ د بې اتفاقۍ یو علت دا ګڼل کېږي چې تیمورشاه ولیعهد نه و ټاکلی.



زمان شاه

شاه زمان چې د نورو ورونو په پرتله پلار ته نږدې و، لایقه او با کفایته ځیناستي یې ځان ګاڼه. شاه زمان له ټولو شهزاده ګانو او مشرانو څخه غوښتنه وکړه چې د نوي پاچا د ټاکلو په جرګه کې ګډون وکړي. جرګې شهزاده زمان د پاچا په توګه وټاکه. نوموړي د دې لپاره چې پر حالاتو واکمن شي، د لنډې مودې لپاره یې د جرګې غړي په بالاحصار کې نظر بند کړل او یوازې محمود او همایون چې په جرګه کې یې ګډون نه درلود، د هغه پاچاهي یې ونه منله. په دوو بېلابېلو جګړو کې محمود او همایون ماتې وخوړه. محمود ایران ته وتښتېد او همایون بندي او ړوند کړای شو.

وروسته یې سردار پاینده محمد خان له وزارته څخه لرې کړ، په دې سره هغه له نورو سردارانو سره یو ځای شو او په دې هڅه کې شو چې شاه زمان له پاچاهۍ څخه لرې کړي. کله چې شاه زمان د پاینده محمد خان له طرحې خبر شو، هغه یې ونیو او ویې واژه او وزیر فتح خان د خپل پلار د مرګ په سبب له شاه محمود سره نږدې شو.

شاه زمان هیله درلوده چې د افغانستان حالت ښه، سوله او آرامي راشي. خو شاه د هېواد په دننه کې د خپلو ورونو او قومي سردارانو له مخالفت او په بهر کې د انګلیس د تحرکاتو او د ایران د لاسوهنو سره مخامخ شو.

په همدې وخت کې ناپیلیون بناپارت خپل استازی شاه زمان ته، د ایران له لارې راولېږه. د ناپیلیون طرحه دا وه چې او یا زره فرانسوي او روسي قواوې د افغانستان له لارې پر هندوستان یرغل وکړي، تر څو په هند کې د انګلیسانو د پرمختګ مخه ونیسي، په داسې حال کې چې شاه زمان یو لک او پنځوس زره پوځیان درلودل او غوښتل یې چې هند له انګلیسانو ونیسي. هغه د ناپیلیون طرحې ته اعتنا ونه کړه او د هند خلکو د انګلیس څخه د خلاصون لپاره له شاه زمان څخه همدا هیله درلوده.

محمود د ایران د قاجاري قواوو او تښتېدلو سردارانو په مرسته پرته له جګړې خراسان او هرات ونیول، پر سیستان او فراه یې یرغل وکړ او تر کندهاره ورسېدل، خو د شاه زمان قواوو د کندهار پر

لور حرکت وکړ. د لارې په اوږدو کې جنرال احمد شاه نورزي له خپلو لس زرو پوځیانو سره له محمود سره یو ځای شو او محمود غزني ته راورسېد. شاه زمان د دې وضع په لیدو سره له کابل څخه د پېښور په لور شاتګ وکړ چې وروسته د ملا عاشق شینواري لخوا ونیول شو او د خپل ورور محمود په وسیله ړوند شو. زمان شاه د ړوندتوب څخه مخکې د کوه نور الماس د ملا عاشق شینواري په کلاه کې پټ کړ. نو په دې توګه محمود د افغانستان اداره تر لاسه کړه. د انګلیس د استعماري سیاست، د ایران د لاس وهنې، د محمود او د یو شمېر سیاسي شخصیتونو بې کفایتۍ په پایله کې افغانستان یو وار بیا په سیاسي او اقتصادي انحطاط کې ډوب شو.

## د شاه محمود ابدالي پاچاهي (۱۸۰۱- ۱۸۰۴ میلادي)

د شاه زمان له خلع کېدو وروسته شهزاده محمود د وزیر فتح خان په مرسته واک ته ورسېد او د هغو خدمتونو له امله چې کړي یې وو، د «شاه دوست» لقب یې ورکړ، خو د محمود د بې کفایتۍ له امله د هېواد په اداره کې سیاسي بحران رامنځ ته شو. همدارنګه د انګلیسانو استعماري فعالیتونو ټول افغانستان ونیو، د ایران قاجاري دولت د انګلیسانو د لاس اله شوه، د خراسان د ولایت د تجزیې په لټه کې شو او د پنجاب ولایت چې پخوا د افغانستان د قلمرو یوه برخه وه، سیکانو په کې د خپلواکۍ اعلان وکړ. کله چې شاه شجاع د شاه زمان له ړندېدو او بندي کېدو او د شاه محمود له پاچا کېدو څخه خبر شو، نو څرنګه چې شاه زمان یې سکه ورور و، نو د شاه زمان غچ اخیستل یې با نه کړل او د افغانستان د تخت و تاج د نیولو اقدام یې وکړ. که څه هم په لومړیو وختونو کې انګرېزانو شاه محمود د شاه زمان په مقابل حمایه کاوه، مګر وروسته د خپلو استعماري غرضونو د پرمخ وړلو او د شاه زمان په وسیله پر هندوستان د ناپیلیون د یرغل د خنثي کولو لپاره یې تر هغه شاه شجاع ښه څېره پیداکړه او هغه یې د شاه محمود پر ضد لمساوه.


شاه محمود

شاه محمود د بالاحصار په ارګ کې په عیش و عشرت اخته و او دولتي چارې د داسې خلکو په لاس کې وې چې د قدرت د لاس ته راوړنې پر سر یو له بله سره په سیالۍ اخته وو، لکه فتح خان»شاه دوست» شیرمحمد خان (مختار الدوله) او صدراعظم محمد اکرم خان، کله چې وزیر فتح خان د مالیاتو د لاس راوړنې لپاره پېښور ، کوهاټ او بنو ته سفر وکړ. د مالیاتو تر لاسه کولو

وروسته یې شهزاده کامران ته چې په کندهار کې و ولاړ او له کندهاره کابل ته راوګرځېد او د محمد اکرم خان پر ځای د صدراعظم په توګه ټاکل شوی و. په همدې وخت کې یو شمېر لوړ دولتي خلک له کابل څخه وتښتېدل او له شاه شجاع سره یو ځای شول. د کابل خلک چې د شاه محمود د ادارې له لاسه په تنګ شوي وو د هغه پر ضد یې پاڅون وکړ او هغه یې په بالاحصار کې محاصره کړ. د شاه محمود قواوو مقاومت ته دوام ورکړ تر څو چې د کوهدامن او کوهستان خلک د کابل د خلکو مرستې ته را ورسېدل. شاه محمود یې د کابل په بالاحصار کې محاصره او وزیر فتح خان ته یې په قلعه قاضي کې ماتې ورکړه او په دې توګه د محمود لومړی واکمني پای ته ورسېده.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړنۍ ډله دې له کندهاره کابل ته د پایتخت د انتقال پر لاملو او دویمه ډله دې د زمان شاه د وخت د نړیوالو مهمو پېښو په اړه یو له بل سره خبرې وکړي او پایله دې یې په ټولګي کې ووایي.

## پوښتنې

۱. د تیمورشاه د شخصیت په اړه معلومات وړاندې کړئ.
۲. تیمورشاه په کوم کال کې پلازمینه له کندهاره کابل ته راوړه؟
۳. قدرت ته د زمان شاه د رسیدو په اړه معلومات ورکړئ.
٤. د زمان شاه د سلطنت مهمې ستونزې لیست کړئ.
۵. شاه محمود څرنګه واک ته ورسید؟

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي د منابعو او ماخذو په لرلو سره د زمان شاه د حکومت او د ده په وړاندې د انګلیسانو د پالیسۍ په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې ووایي.

# د شاه شجاع لومړنۍ پاچاهي ۱۸۰۴-۱۸۰۹ میلادي



هغه تمه او توقع چې د افغانستان خلکو له شاه شجاع څخه در لوده د هغه له جلوس څخه وروسته تر سره شوه. په لاندې متن کې معلومات در کول کیږي.

د شاه زمان ړندېدو د شاه محمود د اداري کمزورتیا او له هغه څخه د خلکو کرکه د شاه شجاع د پاچاهۍ لپاره زمینه مساعده کړې وه. په ۱۸۰٤ میلادي کې شاه شجاع د کابل د خلکو په غوښتنه د زرمت او لوګر له لارې کابل ته ننوت او په بابر بڼ کې دېره شوه او خپله دوستي یې له انګرېزانو سره ښکاره کړه. وزیر فتح خان د مالیاتو د راغونډولو لپاره بامیانو ته تللی و. کله چې کابل ته راورسېد، غوښتل یې چې شاه محمود له محاصرې خلاص او د شاه شجاع حکومت پای ته ورسوي، نو د قلعه قاضي په سیمه کې د وزیر فتح خان او شاه شجاع د قواو ترمنځ جګړه ونښته، چې په پایله کې وزیر فتح خان ماتې وخوړه او شهزاده کامران د کندهار والي ته وتښتېد.وروسته شاه شجاع خپل څواکونه بالاحصار ته د ننه کړل او سلطنت یې اعلان کړ. د شاه شجاع کسانو تر جلوس وروسته ملا عاشق الله شینواری کابل ته راوست لومړی یې تري د کوه نور الماس واخیست او بیا

يې وواژه. شاه شجاع د خپل حکومت د ټينګښت په برخه کې له وزير فتح خان او د هغه له ورونو څخه ويره درلوده او هڅه يې وکړه چې له وزير فتح خان سره خپلې اړيکې ښې کړي، دښمني او تاوتريخوالی پرېږدي. هغه و چې وزير فتح خان يې په ډېر درناوي کابل ته راوغوښت، شاه شجاع د دوست محمد خان لور د وزير فتح خان ورېره ځان ته په نکاح کړه، خو له دې سره يې پر يو بل باور نه درلود. ځکه چې د دښمنۍ اصلي ريښه يې د شاه زمان په وسيله د سردار پاينده محمد خان اعدامول وو چې د وزير فتح خان د پلار قاتل ګڼل کېده نو وزير فتح خان هڅه کوله چې شاه محمود د دويم ځل لپاره پاچاهۍ ته ورسوي. په همدې وخت کې شاه محمود د کابل د بالا حصار له زندانه وتښتېد. هغه جګړه چې د شاه شجاع او د شاه محمود د قواوو ترمنځ ونښته، په پايله کې يې شاه شجاع ماتې وخوړه او شاه محمود د دويم ځل لپاره پاچاهۍ ته ورسېد.

## د شاه محمود دويم ځل پاچاهي ۱۸۰۹- ۱۸۱۸ ميلادي

شاه محمود د وزير فتح خان په مرسته دويم ځل پاچاهۍ ته ورسېد او يو شمېر لوړ رتبه مامورين لکه محمد اکرم خان امين الدوله، شيرمحمد خان ، مختار الدوله او مير علم اعدام شول، ځکه چې دوی د شاه محمود د لومړي حکومت پر وخت شاه شجاع ته تښتېدلي وو، د شاه شجاع د پاچاهی پر وخت يې له هغه سره مرسته کړې وه.

وزير فتح خان له خپلو ورونو سره پر دولتي چارو مسلط شول او د ډېر واک د لاس ته راوړنې لپاره يې خپل ورونه پر مهمو دولتي دندو وګومارل چې د وزير فتح خان ورځ په ورځ ډېرېدونکي واک شهزاده کامران انديښمن او کينه کښ کړ. شاه په داسي يو حالت کې د مزو په تېرولو لګيا، له دولتي چارو نا خبره و او د اقتدار ساحه يې يوازې کابل او کندهار وه ، پېښور د شاه شجاع د نفوذ تر ساحې لاندې و او کشمير عطا محمد خان اداره کاوه چې د مرکزي دولت اطاعت يې نه کاوه. په هرات

کې د شاه محمود سکه وروړ فيروز الدين حکمراني کوله او شاه محمود د خپلې دويمې پاچاهۍ


وزير فتح خان

له پيله ډېر وخت په پايتخت کې اوسېده. هغه وخت چې افغاني قواوې په ختيځ کې په جګړه اخته وې، ايرانيانو غورات ونيول، فيروز الدين له مرکزه مرسته وغوښته، تر څو د ايرانيانو د پرمختګ مخه ونيسي چې په پايله کې وزير فتح خان له دېرش زره پوځيانو سره د هغه د ملاتړ په موخه له کابل څخه حرکت وکړ. وزير فتح خان لومړی شهزاده فيروز الدين له خپلې کورنۍ سره کندهار ته ولېږه چې د کورنۍ ټوله شتمنی او ګاڼه يې د دوست محمد خان د سرېو په وسيله لوټ شوله وروسته وزير فتح خان له ايرانيانو سره جګړه پيل کړه چې په پايله کې ايراني قواوو ماتې وخوړه او شاتګ يې وکړ. شاه محمود چې د شهزاده فيروزالدين د کورنۍ له سپکاوي خبر شو، شهزاده کامران يې د دوست محمد خان د ټکولو لپاره هرات ته ولېږه. دوست محمد خان وتښتېد او کامران وزير فتح خان ونيو او ړوند يې کړ. د وزير فتح خان ورونه چې د هغه له ړندېدو څخه خبر شول، په ټول افغانستان کې له کشميره تر هراته يې په اله ګوله لاس پورې کړ.

دوست محمد خان له کشمير څخه راغی او کابل يې ونيو. وزير فتح خان چې له شاه محمود سره بندي و، شاه محمود هڅه وکړه، چې وزير فتح خان راضي کړي چې ورونه يې له جګړې څخه لاس واخلي، خو د فتح خان ورونو جګړه غوره وګڼله. څرنګه چې د شاه محمود غوښتنه تر سره نه

شوه، نو وزیر فتح خان یې وواژه، په هرات کې یې جلا حکومت جوړ کړ، خو دې حکومت تر ١٨٤٢ میلادي پورې دوام وکړ او بیا افغانستان د سدوزیو، بارکزیو ورونو او د انګلیس د استعماري سیاست د سیالی ډګر وګرځېد.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو جلا ډلو وویشل شي. لومړنۍ ډله دې د شاه شجاع قدرت ته د رسیدو په څرنګوالي او دویمه ډله دې دشاه محمود د وخت د مهمو پېښو په اړه په خپل منځ کې بحث وکړي او پایلي دې په ټولګي کې وړاندي کړي.



## پوښتنې

١- د شاه محمود د سلطنت په اعاده کولو کې د وزیر فتح خان ونډه بیان کړئ.

٢- شاه محمود دویم ځل لپاره څرنګه واك ته ورسید؟

٣- شاه شجاع د خپل سلطنت په لومړۍ ځل کې کومې کړنې وکړې؟



## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د زمانشاه دلري کیدو وروسته د انګریزانو د نفوذ په اړوند له مشرانو او فرهنګي څېرو څخه معلومات تر لاسه او بیا دې په ټولګي کې وړاندي کړي.

# د سیالیو او اختلافاتو منځ ته راتګ

ولې د سدوزیو او بارکزیو کورنیو تر منځ سیالی او اختلافات را پیدا شوې. لاملونه یې څه وو او څه پایلې یې درلودې؟ په دې لوست کې به په دې اړه معلومات وړاندې شي.

محمدزي د کندهار د بارکزیو ریښې پورې تړاو لري. محمد بن عمر د دارو او بارک له قوم څخه وو. ځکه نو بارکزي او محمدزي په یو قوم پورې اړه لري. حاجي جمال بن حاجي یوسف بن یارو بن محمد د شېر سرخ د مزار د جرګې غړی او د احمد شاه بابا د دربار سلاکار و.

سردار پاینده محمدخان د زمان شاه د سلطنت پر وخت د زمان شاه پر ضد د یوې سیاسي توطیې له امله ووژل شو او وزیر فتح خان د پلار د غچ اخیستلو او د زمان شاه د سلطنت په پرځولو کې فعاله ونډه درلوده. شاه محمود د هغه په مرسته سلطنت ته ورسېد. هغه لومړی ړوند او بیا یې وواژه. کله چې شاه محمود او شهزاده کامران هرات ته ولاړل، نو د لنډې مودې لپاره یې هلته پاچاهي وکړه.

وزیر فتح خان د شلو په شاوخوا کې ورونه درلودل، چې هر یو یې په ځانګړې توګه سردارمحمد

عظیم خان او سردار دوست محمد خان د واک د تر لاسه کولو هڅه کول د مرکزي دولت تر سقوط وروسته د وزیر فتح خان د ورونو تر منځ بې اتفاقۍ او ځان غوښتنې د دې سبب شوې چې تر منځ يې جګړې رامنځ ته شي. هغوی ونه شو کړای چې د افغانستان ملي وحدت او مرکزي دولت وژغوري. د هغوی پر له پسې جګړو تر شلو کلونو پورې افغانستان د ګډوډيو او بې نظميو لور ته يووړ او د افغانستان خلکو ته يې بېوزلي او بدبختي په ارمغان راوړه، چې همدې کار د هېواد مرکزي دولت له منځه يووړ او اقتصاد او کلتور يې کمزوری کړ.

سردار دوست محمد خان چې ځنګه کابل ونيو، خپل ورور امير محمد خان يې د غزني والي وټاکه. خو کابل ته د کشمير د والي محمد عظيم خان په راتګ سره د هغوی تر منځ اختلاف ډېر شو. هر يوه غوښتل چې د سدوزيو له شهزادګانو څخه يو سلطنت ته ورسوي او پخپله د وزير په توګه کار وکړي. چې په دې توګه سردار محمد عظيم خان (ايوب شاه) او سردار دوست محمد خان ( سلطان علي شاه) سلطنت ته ورسول او دوی د پاچاهانو په نامه وو. واک او صلاحيت له دواړو ورونو سره و چې هم مهاله په کابل کې دوو پاچاهانو او دوو وزيرانو واکمني کوله.

په **۱۸۱۹** ميلادي کال کې سردار محمد عظيم خان سلطان علي شاه له سلطنته لرې او دوست محمد خان يې له وزارته معزول کړ.

کابل يې سردار محمد عظيم خان، غزني يې سردار دوست محمد خان، پېښور يې سردار يار محمد خان، کشمير يې سردار نواب عبدالجبار خان او ديره جات يې (ډېره اسماعيل خان او ډېره غازي خان) نواب محمد زمان خان ته ورکړل. شمالي او مرکزي ولايتونه، بدخشان، تخار، بلخ، ميمنه او جوزجان د ځايي حاکمانو له خوا اداره کېدل او ملوک الطوايفي په کې واکمنه وه. د هرات ولايت د شاه محمود په وسيله اداره کېده. په دې توګه افغانستان د موروثي ملکيت په توګه د وزير فتح خان د ورونو تر منځ وېشل شوی و.

څرنګه چې د افغانستان بهرنیو دښمنانو او د پنجاب سیکانو؛ د افغانستان له بریو او سفرونو څخه ترخه خاطره درلوده، د افغانستان له ناوړه حالت او د وزیر فتح خان د ورونو د خپلمنځي بې اتفاقیو څخه یې ګټه واخیسته. رنجیت سېنګ د هغه قرارداد له امله چې له انګلیسانو سره یې لاسلیک کړی و، نه شو کولای چې د ستلج له سیند څخه راتېر شي او نورو سیمو ته لاسرسی پیدا کړي، نو ځکه د افغانستان ختیځو سیمو ته متوجه شول. لکه چې په ځان کې یې دا توان لیده، لومړی یې ملتان، کشمیر او بیا یې پېښور تر اټکه ونیول. سردار محمد عظیم خان او امیر دوست محمد خان د افغانستان د لاسه تللو سیمو د نیولو لپاره سند ته ولاړل، خو امیر دوست محمد خان ناڅاپه کابل ته راستون شو او د قومي مشرانو سره تر موافقې وروسته یې له سردار محمد عظیم خان سره مخالفت ښکاره کړ او په داسې حال کې چې مخالفت دوام درلود، له کابل څخه غزني ته روان شو؛ سره له دې هم د دوی مخالفتونو دوام درلود.

سردار محمد عظیم خان پرته له جګړې کابل ته راغی، په دې وخت کې رنجیت سېنګ ځینې نورې سیمې هم ونیولې او سردار محمد عظیم خان د دویم ځل لپاره د رنجیت سېنګ د مقابلې لپاره خپل قوتونه ولېږل او پرته له کومې لاسته راوړنې چې غوښتل یې کابل ته راشي، د لارې په اوږدو کې ناروغ او مړ شو، چې د عاشقانو او عارفانو په زیارت کې خاورو ته وسپارل شو. وروسته له دې سردار دوست محمد خان د محمد عظیم خان د زوی سردار حبیب الله خان له مخالفت سره مخامخ شو.

امیر دوست محمد خان د یوه حکومت د جوړولو سربېزه جوړه کړه، په داسې حا ل کې چې د سیکانو پرمختګ دوام درلود. له دې سره جوخت شاه شجاع د انګلیسانو په لمسون د کندهار د نیولو تیاری ونیو. امیر دوست محمد خان لومړی جلال آباد ته سفر وکړ او هغه یې ونیو او وروسته یې خپلې قواوې کندهار ته ولېږلې. د امیر دوست محمد خان او د انګلیسي جنرالانو او شاشجاع د قواو تر منځ تر سختې جګړې وروسته د دښمن قواو ماتې وخوړه او کندهار فتح شو. شاه شجاع

او ملګري يې وتښتېدل. شاه شجاع د ختکو په غرونو کې پټ شو.

امير دوست محمد خان چې کله په کندهار کې و، د رنجيت سينګ د ټکولو لپاره يې اقدام وکړ، خو د کندهار سردارانو يې مرسته ونه کړه، هغه ناهيلی کابل ته ستون شو. کله چې د خيبر درې له نيولو څخه خبر شو، خپل زوی سردار محمد اکبر خان يې له لږو قواو سره هلته واستاوه وزير محمد اکبرخان يوازې دفاع کوله او نه يې غوښتل چې تعرض وکړي، ځکه چې له کابله يې مرستندويه قواو ته انتظار کاوه. نوي راغلي ځواک له رنجيت سنګ څخه وغوښتل، چې پېښور خالي کړي، خوهغه ورته ارزښت ور نه کړ.



## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو وويشل شي. لومړنۍ ډله دې د سدوزيو او بارکزيو د خپل منځي اختلافاتو د عواملو په اړه او دويمه ډله دې د انګليسانو د لمسون او د اختلافاتو په زياتوالي کې خپل معلومات د خپلو ټولګيوالو په وړاندې ووايي.



## پوښتنې

۱. وزير فتح خان کومې کورنۍ پورې اړه درلوده؟

۲. د سدوزيو او بارکزيو د سياليو لاملونه څه وو؟

۳. د سيمې ځواکونو په ځانګړې توګه انګليسانو د وزير فتح خان د ورونو د بې اتفاقيو په ډيرولو کې کوم نقش ولوباوه؟



## له ټولګي څخه دباندې فعاليت

زده کوونکي دې د منابعو او ماخذو په لرلو سره د سردار دوست محمد خان او سردار عظيم خان دسياليو د اصلی لاملونو په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګی کی دې ووايې.

# د واک لیږد او لاسوهنې (۱۸۱۸-۱۸۳۴میلادي)


امیر دوست محمد خان

د واك لېږد څرنګه له سدوزايانو څخه بارکزايانو ته سرته ورسيد؟ انګليسانو څه غبرګون وښود او د افغانستان د خلکو لپاره يې کومې پايلې درلودې؟ په دې لوست کې به د دې پوښتنو ځوبونه تر لاسه کړئ.

د سدوزيو سلطنت د احمدشاه بابا په مشرۍ په کال (۱۷۴۷م.) کې پيل او د ايوب شاه سدوزي په سلطنت سره پای ته رسيږي. يوشمېرکورني او بهرني لاملونه د سدوزيانو د سقوط سبب شول چې په لاندې توګه د يادونې وړ دي:

د افغانستان په کورنيو چارو کې د انګليسانو او ايرانيانو مستقيمې مداخلې او توطيې، د تيمور شاه د زامنو او لمسيانو زياتوالی او پر خپلو رقيبانو باندې د برياليتوب لپاره خپل ځانونه د انګليسانو او ايرانيانو په لمنو کې اچول او همدارنګه د بارکزيو سردارانو لکه د سردار پاينده محمد خان او وزير فتح خان وژنه د سدوزيو د سقوط له لاملونو څخه ګڼل کېږي.

مخکې له دې چې سردار دوست محمد خان واك ته ورسيږي، هغه له سيکانو څخه د افغانستان له لاسه تلليو سيمو په برخه کې د خلکو د فشار لاندې و او پرته له دې چې له ديني عالمانو او قومي

مشرانو څخه د جهاد فتوی واخلي، بله لاره یې نه درلوده. څکه نو دیني عالمانو هغه ته مشوره ورکړه چې خپل ځان امیر المومنین اعلان کړي، تر څو د شرعي جهاد د اعلان صلاحیت تر لاسه کړي. په ۱۸۳۵م. کې امیر دوست محمد خان د خپلو یو شمېر باوري کسانو سره د عیدگاه جومات ته لاړ( په هغه وخت کې عیدگاه د بگرامیو سره نږدې و). په دې وخت کې میر حاجي د میر واعظ زوی چې د کابل مشهور عالم او مبارز و، د هغه په وسیله چې د عالمانو مشر و، د ساده مراسمو په ترڅ کې امیر المومنین وټاکل شو او د هغه په نامه لومړنۍ خطبه وویل شوه.

امیر دوست محمد خان د جهاد امر اعلان کړ او خلکو یې پلوي وکړه. د ده پوځ پنځوس زره کسییز پلی ځواک او لس زره یې داوطلب سپاره وو، په ۱۸۳۵م. کې د پېښور حوزې ته داخل شو او د خیبر درې په (شېخانو) کې ځای پر ځای شو. وروور یې سردار سلطان محمد خان د لس زره باجوړي مبارزو ځوانانو مشري پر غاړه درلوده، چې دا هم د همدې ځواک یوه برخه وه. د پنجاب حکومت ته وېره پیدا شوه، ویې غوښتل چې د سولې له لارې رامخکې شي. انگلیسانو یو هییت د ( هارلان) په مشرۍ د امیر دربار ته واستاوه او هارلان دا دنده درلوده، چې د افغاني قواو په منځ کې بې اتفاقي واچوي. سلطان محمد خان ته یې د پېښور د حکومت ورکولو وعده ورکړه. سلطان محمد خان خپل لس زره کسیز ځواک له افغاني قواو څخه بېل کړ. امیر دوست محمد خان پرته له څنډه کابل ته راغی، چې د امیر دې پرېکړې ټول خلک حیران کړل.

په تېر څپرکي کې مو یادونه کړې وه، چې د افغانستان له لارې د ناپلیون احتمالي یرغل انگلیسان په وېره کې اچولي وو. په همدې وخت کې په روسیه کې ورته پېښې رامنځ ته شوې، څکه نو انگلیسانو په افغانستان کې دلچسپي وښوده. انگلیسانو له امیر دوست محمد خان څخه وغوښتل چې ناپلیون ته اجازه ور نه کړي، چې د افغانستان له لارې هند ته داخل شي. امیر دوست محمد خان د پېښور د تر لاسه کولو په صورت کې د انگلیسانو شرط ومانه. خو انگلیسانو کابل ته د روسیې د هییت راتگ بانه

کړه او له امیر سره یې اړیکې پرې کړې. په لاهور کې د انگلیسانو، شاه شجاع او رنجیت سنګ تر منځ په ۱۸۳۸ م. کې د مثلث په نامه معاهده لاسلیک شوه، چې د دې تړون ځینې مواد په لاندې ډول دي:

۱- شاه شجاع د افغانستان د ټولو حقوقو څخه د افغاني ولایت د اندوس د لویدیځې غاړې څخه لکه پشاور او دیره جات د سیک د دولت په گټه تیر شي.

۲- د پنجاب امیر وعده کوي چې د خپلو ځواکونو په مرسته شجاع الملک بیرته د افغانستان د تخت او تاج څښتن کړي.

۳- د بریتانیه دولت د خیر غوښتونکي په توگه د موخو د سر ته رسولو لپاره د دوی تر منځ مرسته کوي.

د یادې شوې معاهدې او د سلمې د اعلامیې پر بنسټ انگلیسي پوځ د سند له سیند څخه راتیر شول او له شاشجاع سره یو ځای د بولان درې ته نږدې شول او کندهار یې ونیو. د شاشجاع د پاچاهی اعلان په رسمي توگه وشو او شاشجاع په قندهار کې دا ژمنه وکړه، چې انگلیسي پوځ دې په افغانستان کې په دایمي توگه پاتې شي. د انگلیسانو نورې قواوې جلال اباد ته نږدې شوې. د امیر دوست محمد خان د خراب حالت سره سره غازي وزیر محمد اکبر خان او سردار غلام حیدر خان د غزني والي ته امر وکړ، چې د دښمن په وړاندې په ټول ځواک سره مقاومت وکړي. هغوی مقاومت ونه شو کړای او انگلیسانو غزني ونیو او کابل ته نږدې شول. امیر دوست محمد خان بخارا ته پناه یووړه. که څه هم په ښکاره شاشجاع پاچا و، خو ټول واک د مکناټن او انگلیسانو په لاس کې و.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو وویشل شي. لومړنۍ ډله دې د ۱۸۱۸ او ۱۸۳٤ کلونو ترمنځ د سیاسي او ټولنیز وضعیت په اړه او دویمه ډله دې د انګلیسانو د تیری د لاملونو په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې ووايي.

## پوښتنې

۱- امیر دوست محمد خان څرنګه واک ته ورسید؟

۲- د امیر دوست محمد خان خطي مشي څرنګه ارزوئ ؟

۳- امیر دوست محمد خان ولې ځان ته د امیرالمومنین لقب ورکړ؟

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د منابعو او ماخذو په لرلو سره د افغانستان په اړه د رنجیت سنګ د پالیسی په برخه کې معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې ووايي.

# شاه شجاع او ملي پاڅون



پوهیږئ چې شاه شجاع دوهم ځل د کومو قوتونو په مرسته واک ته ورسید، د خلکو غبرگون، ملي پاڅون او د انگلیسانو تلفات او ماتې هغه مطالب دي چې په دې لوست کې به ورسره آشنا شئ.

له هماغې ورځې څخه چې شاه شجاع سلطنت ته ورسید، خلک یې له ټیټ فطرت څخه خبر شول، د هغه او د انگلیسانو له منځه وړل یې له خپلو دیني او ملي وجایبو څخه وگڼل او د خلکو په منځ کې د خپلواکۍ، ننگ او ناموس د ساتنې احساس پیاوړی شو. لومړی یې له خطبې څخه د شاه شجاع نوم لرې کړ او له انگلیسانو څخه یې خپله سخته کرکه څرگنده کړه. د انگلیسانو هغه خزانې چې له کندهاره کابل ته انتقالېدې، غازیانو غنیمت ونیولې. د کابل - کندهار لاره وتړل شوه او په مشرقي کې د سید جمال الدین افغان د کورنۍ د خلکو له خوا پاڅون پیل شو. دې حالت انگلیسان وارخطا کړل، په ځانگړې توگه کله چې روسانو امیر دوست محمد خان له ډېرو وسلو سره کابل ته راولېږه او د امیر ډېر شمېر پلویان له هغه سره یو ځای شول. په کندهار او سوېلي کې انگلیسي ضد شورشونه پیل شول. په ټول هېواد کې سر تا سري ناخوښي پیل شوه او نوره دا شونې نه وه چې شاه شجاع خلق وغولوي.

امیر دوست محمد خان له بخارا څخه راووت او د جګړې د تیاري لپاره له تاشقرغان څخه کوهستان ته لاړ. د کوهستان خلکو د میر مسجدي خان په مشرۍ پر انګلیسانو یرغل کړی و. د یوشمېر خاینینو د خیانت له امله نوموړی یرغل خنثی شو، نو ځکه امیر دوست محمد خان کابل ته راغی او ځان یې انګلیسانو ته تسلیم کړ او مکناټن دا ټینګار وکړ چې د شاه شجاع د وزیر په توګه دنده تر سره کړي، خو امیر دوست محمد خان دا ونه منله او دا یې غوره وګڼله چې له افغانستانه ووځي. انګلیسانو هغه له خپلې کورنۍ سره کلکتې ته ولېږه.


وزیر اکبر خان

انګلیسانو دا فکر کاوه چې د مخالفینو مشر یې له منځه یوور، خو له دې سره هم جهاد د انګلیسانو د شړلو او د شاه شجاع د سلطنت د پرځولو زمزمه غلې نه شوه. د خلکو اتحاد او ملي پاڅون ثمر ته ورسېد.

دغه ملي پاڅون له کابله پیل شو د قومي مشرانو لکه نایب امین الله خان لوګري او عبدالله خان اڅکزي تر منځ د تړون تر عقد وروسته، نورو مجاهدینو د جهاد جنډه پورته کړه. لومړی یې (برنس) په خپل کور کې وواژه او وروسته یې د انګلیسانو ټولې خزانې او د وسلو ذخیرې ونیولې. ټول وګړي، لکه: د کوهستان خلک، لوګر او وردګ له هغوی سره یو ځای شول چې انګلیسي قواو ته یې ډېر تلفات ورکړل او پاتې یې په شېرپور کې کلابند شول. په همدې وخت کې وزیر محمد اکبرخان د بخارا له بنده خوشې شو او ځان یې کابل ته راورساوه. د هغه په راتلو سره د مجاهدینو روحیه لا پیاوړې شوه. مکناټن له چل څخه کار واخیست او له کابل څخه یې د انګلیسانو د وتنې د تړون وړاندیز وکړ، ترڅو مجاهدین مصروف او له هند څخه نورې قواوې راوغواړي. مکناټن له وزیر محمد اکبر خان سره دوکه کوله په مجلس کې یې وغوښتل چې هغه ووژني، خو وزیر محمد اکبرخان مکناټن په هغه تومانچه چې یې ورته ډالۍ کړې وه وویشت او په دې توګه د انګلیسانو سیاسي استازی او مختار وزیر

( ولیام مکناټن) له منځه یووړل شول. له دې وروسته د انګلیسي قواو په منځ کې عجیب وحشت رامنځ ته شو. خوراکي مواد یې پای ته ورسېدل. قواوې یې چې شپاړس زره او پنځه سوه کسو ته رسېدې، له لوږې سره مخامخ شوې. سوړ ژمی و چې انګلیسانو له کابل څخه د وتلو شرایط د مجبوریت له امله ومنل.

## د کابل د پرېښودو شرایط

د افغانستان د ټولو سیمو پرېښودل د دې لپاره چې بیا وسلې ته لاس نه کړي، پرته له شپږو توپونو څخه د ټولې وسلې تسلیمول، خو سره له دې انګلیسانو هڅه وکړه چې له خپلو قواو سره چې په جلال آباد کې وې، اړیکې ټینګې کړي. ځکه نو د جلال آباد د لارې په اوږدو کې پرې د مجاهدینو یرغلونه پیل شول او ډېر سخت ځاني او مالي زیانونه یې وزغمل. له شپاړس زره پنځه سوه پوځیانو څخه یې یوازې یو کس ډاکتر برایډن په نیم ژواندي حالت کې پېښور ته ورسېد. د لندن په سیاسي کړیو کې دې پېښې حیرانوونکي غبرګونونه رامنځ ته کړل. د هند وایسرای ( لارډ اکلنډ) تبدیل او پر ځای یې ( لارد لټن برون) وټاکل شو.

انګرېزان د دې لپاره چې خپل بایللی حیثیت بېرته تر لاسه کړي، خپلې دوه ډلې قواوې یې د افغانستان لوري ته راولېږلې. د جنرال (پالک) په مشرۍ شل زره قواو لومړی له شاه شجاع سره اړیکې ټینګې کړې. څرنګه چې شاه شجاع خپل ځان د مجاهدینو په منځ کې محاصره لیده، نو د مجبوریت له مخې یې د انګرېزانو پر ضد جهاد اعلان کړ، خو له بلې خوا یې ورځیني اطلاعات یې له افغانستان څخه انګلیسانو ته ورکول. د جنرال پالک تر رسېدو دمخه خلکو شاه شجاع وواژه او د شاه شجاع زوی (فتح جنګ) واک ته ورسېد خو هغه هم د امیر دوست محمد خان د ورونو له مخالفت سره مخامخ شو، انګلیسانو ته یې پناه یووړه. تر فتح جنګ وروسته ورور یې شهزاده شاهپور سلطنت ته ورسېد.

د انګلیسانو د قواو دویمه ډله د جنرال (ناټ) په مشرۍ کندهار ته ورسېده او په همدې وخت

کې امیر دوست محمد خان له کلکتې څخه کابل ته راغی او د حکومت چارې یې په لاس کې واخیستې. انګرېزانو د امیر دولت سمدستي په رسمیت وپېژانده او درې اړخیز (مثلث) تړون چې د انګرېزانو، شاه شجاع او رنجیت سېنګ تر مینځ لاس لیک شوی و. پخپله له منځه لاړ. د دې سره سره انګلیسانو د افغانستان په چارو کې لاسوهنه کوله او د افغانستان د سیاسي یوالي لپاره یې د پېښور، کندهار او هرات یو ځای کېدل له کابل سره د خپل استعماري سیاست په وړاندې ضد کارګاڼه.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړنۍ ډله دې پر افغانستان باندې د انګلیسانو د لومړي یرغل په اړه او دویمه ډله دې د لاهور د معاهدې په برخه کې معلومات ترلاسه او په ټولګي کې دې ووایي.



## پوښتنې

۱. پر افغانستان باندې د انګلیس لومړی یرغل په کوم کال کې او څرنګه وشو؟

۳. د افغان انګلیس د لومړۍ جګړې د مبارزینو نومونه لیست کړئ.



## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې پر افغانستان باندې د انګلیس د لومړني یرغل د پایلې په اړه د خپلو ښوونکو په مرسته معلومات ترلاسه او په ټولګي کې دې ووایي.

# د امیر دوست محمد خان دویمه پاچاهي

امیر دوست محمد خان دوهم ځل ځرنګه هېواد ته راستون شو، په کومو کړنو یې لاس پورې کړ او کومه معاهده یې د انګلیسانو سره لاسلیک کړه؟ په دې لوست کې به د دې پوښتنو ځوابونه ترلاسه کړئ.

امیر دوست محمد خان په ۱۸۴۲م.کال کې د دویم ځل لپاره سلطنت ته ورسېد. لومړی یې د هېواد د کورنیو اوضاعو په اصلاح لاس پورې کړ، ځکه د ملوك الطوایفی له امله داخلي حالت خراب او بې نظمه شوی و. د سیاسي او مرکزي دولت د ټینګښت لپاره یې ډېرې هلې ځلې وکړې او ځینې هغه سیمې چې له مرکزي دولته، لکه: بامیان، مزار شریف او ټول هزاره جات جلا شوې وې، ونیولې او له مرکزي دولت سره یې یو ځای کړې.

د تګاب، نجراب او خوګیانیو بغاوتونه غلي کړی شول. اتل غازي محمد اکبرخان د امیر دوست محمد خان زوی د یوه سربښندونکي او وطنپرست په توګه د افغانستان د ملي وحدت لپاره ډېر زیارونه وګالل، خو د ۲۹ کلنی په عمر کې چې یو هندي طبیب یې معالجه کوله، زهرجنې ګولی یې ورکړې او شهید کړای شو چې دحضرت علي(رض) په روضه کې خاورو ته وسپارل شو. امیر دوست محمد خان د پېښور د نیولو ډېره هڅه وکړه، خو بریالی نه شو او نور یې نه غوښتل چې له انګلیسانو سره یې

اړیکې خرابې شي. خو په داخل کې یې ټولې سیمې د مرکزي حکومت تر ولکې لاندې راوستې. که څه هم د لوی احمد شاه بابا په سرحداتو کې بدلون راغی، خو مرکزي حکومت تر یو وخت وروسته جوړ شو.

امیر دوست محمد خان د خپلې دویم ځل واکمنۍ کې د انګلیسانو او د ختیځې هندي کمپنۍ سره یو شمیر تړونونه لاسلیک کړل چې په لاندې ډول ورڅخه یادونه کیږي:

## د جمرود تړونونه

انګلیسانو د جمرود د تړونونو وروسته له امیر دوست محمد خان څخه دوه امتیازه غوښتل، لومړی د هغو سیمو په رسمیت پیژندنه چې پخوا د سیکانو تر ولکې لاندې وو چې وروسته انګلیسانو ونیولې. دویم دا چې روسانو د ایرانیانو په مرسته غوښتل چې د هرات ولایت په خپله ولکه ونیسي، ځکه نو د روسانو د پرمختګ له امله یې خپلې ګټې په خطر کې لیدلې. نو دا خطر باید رفع شوي وای.

**لومړی تړون**: د هند د ګورنر جنرا ل لارد الهزی په هدایت د پنجاب والي سرجان لارنس د دې تړون کولو ته موظف شوي وو، خو خپله امیر دوست محمد خان په دې خبرواترو کې ګډون و نه کړ او په خپل ځای یې سردار غلام حیدر خان په کا ل ۱۸۵۵م. کې جمرود ته چې د پېښور ښار ته نژدې پروت دی ولیږه. له مذکرو وروسته د درې فقري تړون (معاهده) د همدې کال د مارچ په ۳۰ د دواړو لورو ترمنځ لاسلیک شو.

۱- امیر دوست محمد خان د کابل حاکم او د ختیځ هندي کمپنۍ تر منځ, هغه سیمي چې د ده په کنټرول کې دي له هغه وروسته د ده د ورثې او د ختیځ هندي کمپنۍ تر منځ به دایمی سوله او دوستي ټینګه وي.

۲- ختیځه هندي کمپنۍ ژمنه کوي هغه سیمې چې اوس د امیر په تصرف کې دي احترام وکړي.

۳- امیر دوست محمد خان د کابل حاکم او د افغانستان هغه سیمې چې دده په واک کې دي د خپل ځان او خپلي ورثې لخوا ژمنه کوي د ختیځي هندي کمپنۍ د سیمو احترام وکړي او هیڅ کله د هغوی په کورنیو چارو کې لاس وهنه و نه کړي. د هندي کمپنۍ د دوستانو سره دوست او د دښمنانو سره دښمن اوسي.

## دویم تړون

کله چې انګلیسان د هرات ولایت له تجزیې څخه تیر شول په دې لټه کې شول چې امیر دوست محمد خان سره خبري اترې پیل کړي. امیر په هند کې خبري اتري قبول نه کړې نو دا خبرې اترې په جمرود کې د امیر دوست محمد خان او سرجان لارنس تر مینځ وشوې او دغه تړون د محمد اعظم خان له خوا لاسلیک شو. چې مواد یې په لاندې ډول دي.

۱- ایران د خپلو ژمنو بر عکس هرات ونیوه او انګلیسان به جګړې ته د ایرانیانو پر خلاف دوام ور کړي تر څو امیر وکولای شي د نورو ولایاتو څخه دفاع وکړي د جګړې تر پای پورې به انګلستان به هره میاشت سل زره روپۍ ((لس زره پونده)) امیر ته ورکوي.

۲- انګلیسان، امیر دوست محمد خان ته سربېره په اوسني پوځ یو دیارلس زریز سواره او اتلس زریز پلي پوځ مجهز کړي.

۳- د پیسو اخیستنه او لېږدیدنه په امیر دوست محمد خان پورې اړه لري.

٤- د انګلیستان نور استازي به د افغانستان په دریو ولایاتو (کابل، قندهار او بلخ) کې د څارنې او جګړېزو راپورونو چمتو کولو په موخه استوګن شي. دوی به په کورنیو چاروکې د لاس وهنې حق نه لري خو د دوی ساتنه به د امیر دوست محمد خان په غاړه وي.

٥- د کابل یو استازی به په پېښورکې استوګن شي.

٦- د ایران سره د جګړې له پای وروسته به د لومړۍ مادې مطابق پیسې قطع شي.

۷- د پیسو د قطع کولو وروسته به انګریزي منصبداران له افغانستان څخه ووځي که چیرې غوښتنه وشي یو مسلمان استازي به په کابل کې استوګن شي.

۸- امیر دوست محمد خان به افغانستان ته د انګریزي افسرانو د راتلو او وتلو په وخت کې د پوره

ساتوونکو په وسیله د دوی محافظت او ساتنه کوي.

۹- د پیسو ورکول به د جنوری د میاشتې له لومړۍ نیټې څخه پیل کیږي.

۱۰- درې سوه زره روپۍ په قندهار او دوه سوه زره په کابل کې ورکول له دې تړون څخه جلا دي. هغه د ختیځې هندي کمپنۍ یوه ډالۍ ده. د شپږ سوه زره روپیو ورکړه په کابل کې د نورو موخو لپاره ده او په بل تړون پوري اړه لري.

۱۱- دغه تړون د مخکیني تړون ناقض نشي کېدلی. امیر دوست محمد خان به د سولې او جګړې په حالت کې د ایران او د هغه د متفیقینو وړاندیزونه انګلیسانو ته رسوي.

۱۲- سربېره پر څلور زره ټوپکو نور څلور زره ټوپکه به د انګلیس د حکومت له خوا د ټل په سیمه کې د امیر دوست محمد خان مامورینو ته وسپارل شي.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوه ډلو وویشل شي لومړۍ ډله دې د اتل او پیاوړي ځیرې وزیر محمد اکبر خان او د هغه ونډه د امیر دوست محمد خان د نظام په ټینګښت کې او دویمه ډله دې د امیر دوست محمد خان د کورني سیاست په اړه معلومات تر لاسه او بیا دې په ټولګي کې پرې مباحثه او مشاجره وکړي.



## پوښتنې

۱- د جمرود د لومړي تړون مواد معرفي کړئ.

۲- د جمرود دویم تړون د کومو شخصیتونو تر منځ لاسلیك او د دغه تړون درې مادې بیان کړئ؟

۳-د جمرود د تړونونو لاملونه توضیح کړئ.



## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د مشرانو او فرهنګي ځیرو څخه د امیر دوست محمد خان د خدمتونو په اړه معلومات تر لاسه او بیا دې په ټولګي کې بیان کړي.

# د امير شېر علي خان لومړنی سلطنت (۱۸۶۳ـ۱۸۶۶ میلادي)



امير شير علي خان

سردار شير علی خان څرنگه واك ته ورسـيد. د كومـو مخالفتونو سـره مخامخ شـو او اداري يې ولې سقوط وكـړ؟ د دې مطلب ځـواب به په دې لوست كې ترلاسه كړئ.

د افغانستان خلك د وزير فتح خان د ورونو د تسلط په دوره كې كابو نيمه پېړۍ له جگړو او ناخوالو سره لاس او گرېوان وو. ځكه چې په دې بې نظميو كې د انگليسانو استعماري سياست دخيل و. د امير شېر علي خان له سلطنت څخه مخكې پر امير دوست محمد خان باندې يو شمېر معاهدې تحميل شوې چې دغو معاهدو له مخې ترانزيتي او مواصلاتي لارې د افغانستان د خلكو پر مخ وتړل شوې او افغانستان يې په اقتصادي او سياسي محاصره كې ښكېل كړ.

امير شېر علي خان د خپل پلار په ژوند كې وليعهد ټاكل شوی و چې د پلار له مرگ څخه وروسته يې د ۱۸۶۳ كال د جون په ۱۲مه د ۴۱ كلنۍ په عمر خپل سلطنت اعلان كړ. ورونو يې ظاهراً هغه ته بيعت وكړ، خو په پټه كې يې د هغه په وړاندې مخالفت پيل كړ.

امير شېر علي خان د هرات ولايت د تنظيم لپاره خپل زوی شهزاده محمد يعقوب خان پرېښود او پخپله له محمد اعظم خان سره كابل ته روان شو، خو د سبزوار(شينډنډ) په برخه كې محمد اعظم

خان له امیر څخه بېل شو او د مرکزي سیمو له لارې د خپل سکه ورور سردار محمد حسین خان ته چې د هزاره جاتو حکمران و؛ ورغی او غوښتل یې چې د هزاره خلکو په مرسته پر کابل یرغل وکړي، خو د هزاره جاتو خلکو خپله وفاداري له امیر شېر علي خان څخه اعلان کړه. وروسته محمد اعظم خان له خپلو نورو ورونو څخه مرسته وغوښته او د یوې حملې تیاری یې ونیو، خو د امیر شېر علي خان د ځواکونو په وړاندې یې مقاومت ونه شو کړای، د انگلیسانو دولت ته یې پناه یووړه. په یوه بلې جگړې کې سردار عبدالرحمن خان او محمد افضل خان د هندوکش د درې د باجگاه په سیمه کې د امیر شېر علي خان د قواو په وړاندې ماتې وخوړه. محمد افضل خان تسلیم او عبدالرحمن خان بخارا ته تیښته وکړه.

امیر شیر علی خان په ۱۸۶۵ م کال کې د کندهار د تصفیې لپاره د یو شمېر ډېرو قواو سره حرکت وکړ او له سردار محمد امین خان سره یې مقابله پیل کړه، او د هغې جگړې په ترځ کې چې د دواړو لوریو تر منځ ونښته، د هغه زوی سردار محمد علي خان او تره یې محمد امین خان سره له اتو زرو عسکرو سره ووژل شول. امیر په دې پېښه ډېر غمجن شو. پر روحیاتو یې بده اغېزه وشوه، د اعصابو کنترول یې له لاسه ورکړ او په کندهار کې یې جلا والی غوره کړ. چې دغه انزوا د امیر شیر علی خان د سلطنت د سقوط لامل وگرځېده.

## د امیر محمد افضل خان سلطنت (۱۸۶۶ـ۱۸۶۷ میلادي)

د امیر شېر علي خان گوښه والی د دې سبب شو، چې سردار محمد اعظم خان او سردار عبدالرحمن خان کابل ونیسي، چې د کابل تر نیولو وروسته محمد افضل خان سلطنت ته ورسېد او څنگه چې انگلیسان په هند کې د امیر محمد افضل خان له پاچاهۍ خبر شول، نو سمدستي یې د هغه سلطنت به رسمیت وپېژانده. وروسته یې خپل سیاسي استازی کابل ته واستاوه، په داسې حال کې چې د افغانستان رسمي پاچا شتون درلود او خلکو یې ملاتړ کاوه.


سردارمحمد افضل خان

د امیر شېر علي خان قواوو د محمد اعظم خان او عبدالرحمن خان د قواوو په وړاندې ماتې وخوړه او په هرات کې د خپل زوی محمد یعقوب خان سره دېره شو. وروسته د اقچې پخواني حاکم فیض محمد خان امیر شېر علي خان ته خبر واستاوه او د مرستې وړاندیز یې وکړ. امیر شېر علي خان د میمنې او مزار شریف له لارې له هغه سره یو ځای شو. په ۱۸۶۷میلادي کا ل کې عبدالرحمن خان د پنجشېر په بازارک کې د امیر شېر علي خان د قواوو مخه ونیوله او فیض محمد په جګړه کې ووژل شو او امیر شېر علي خان بیا هرات ته ستون شو. په همدې وخت کې امیر محمد افضل خان د ناروغۍ له امله مړ شو او جسد یې په قلعه حشمت خان کې له شهدا صالحین (ع) سره نژدې خاورو ته وسپارل شو. د هغه د سلطنت موده ډېره لنډه وه او کوم مهم کار د هغه په وخت کې ونه شو.

## د امیر محمد اعظم خان سلطنت (۱۸۶۷- ۱۸۶۸ میلادي)


سردار محمد اعظم خان

د امیر محمد افضل خان له مرګ څخه وروسته سردار محمد اعظم خان د عبدالرحمن خان په موافقه سلطنت ته ورسېد. امیر محمد اعظم خان یو نوښتګر سړی و، غوښتل یې چې یو شمېر اصلاحات په افغانستان کې رامنځ ته کړي، خو وخت ورته پیدا نه شو. امیر شېر علي خان له هراته کندهار ته ورسېد او د کندهار خلک چې د امیر محمد اعظم خان د زامنو د ظلم له لاسه ډېر تنګ شوي وو، نو د امیر شېر علي خان هرکلی یې وکړ. په دې وخت کې امیر عبدالرحمن خان د شمالي ولایتونو په ایلولو بوخت و. امیر شېر علي خان د کابل د نیولو تکل وکړ، مخکې له دې چې کابل ته ورسېږي، د کابل خلکو د امیر محمد اعظم خان

په وړاندې احتجاج او له امير شېر علي خان څخه يې ملاتړ وکړ. امير محمد اعظم خان وليدل چې اوضاع د امير شېر علي خان په ګټه ده، روحيه يې کمزورې شوه او امير عبدالرحمن خان ته چې په تخارکې و، ورغی. په ۱۸۶۸ ميلادي کال کې امير عبدالرحمن خان او امير محمد اعظم خان قواوې ترتيب کړې او د غزني د ششګاو په سيمه کې د امير شېرعلي خان د لښکرو سره مخامخ شول خو ماتې يې وخوړه. او دواړه وتښتېدل. انګليسانو هغوی ته په هندوستان کې د اوسېدو بلنه ورکړه، خو هغوی تهران ته د سيستان له لارې روان شول امير محمد اعظم خان د لارې په اوږدو کې ناروغ او مړ شو او په بسطام کې خښ شو او سردار عبدالرحمن خان بخارا ته پناه يووړه.

## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړنۍ ډله دې د امير شېر علي خان د شخصيت او دويمه ډله دې د امير د کورنيو اختلافونو په اړه خبرې اترې وکړي.

## پوښتنې

۱ـ امير شېر علي خان څنګه واک ته ورسېد؟
۲ـ د امير شېر علي خان داخلي ستونزې د هغه د لومړي سلطنت پر وخت وليکئ.
۳ـ محمد افضل خان څنګه قدرت ته ورسېد؟
۴ـ امير محمد اعظم خان څنګه واک ته ورسيد؟

## له ټولګي څخه د باندې فعاليت

زده کوونکي دې د امير شېر علي خان د لومړي سلطنت د ماتې د عواملو په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې ووايي.

# د امیر شېر علي خان دویمه پاچاهي (۱۸٦۸ـ ۱۸۷۹ میلادي)


سید جمال الدین افغان

په کومو برخو کې اصلاحات رامنځ ته شول، پایلې یې څه وې او د انګلسانو د دویم تیري لاملونه او اړوندې موضوعګانې به په دې لوست کې ولولئ.

امیر شېر علي خان د ۱۸٦۸ میلادي کال په پای کې په ششګاو کې د سردار محمد اعظم خان او سردار عبدالرحمن خان تر ماتې وروسته کابل ته داخل او د دویم ځل لپاره سلطنت ته ورسېد. هغه لومړی مرکزي حکومت ټینګ کړ.

امیر شېر علي خان یو روښانفکره او نوښتګر سړی و. نوموړی په افغانستان کې د نوي تمدن بنسټ اېښودونکی دی. افغانستان ته د نوي تمدن راتګ د اروپا له صنعتي انقلابه پیلېږي. امیر شېر علي خان د مشهور فیلسوف او پوه افغان سید جمال الدین لارښوونې په پام کې ونیولې او په اصلاحاتو کې یې ترې ګټه واخیسته.

امیر شېر علي خان له روسیې او ایران سره خپلې سیاسي اړیکې د دوستۍ پر بنسټ پیل کړې او عطا محمد سدوزی یې د افغانستان د رسمیت پېژندلو لپاره برتانوي هند ته واستاوه. وروسته یې پخپله له برتانوي هند څخه لیدنه وکړه. په برتانوي هند کې تکنالوژۍ او تمدن دی یو شمېر اصلاحاتو(Reform) ته وهڅاوه.

**الف ـ اداري برخه**: حکومت یا اجرائیه قوه رامنځ ته شوه. په راس کې یې سید نورمحمد شاه فوشنجي صدراعظم، سپاه سالار حسین علي د دفاع وزیر، ارسلا خان د بهرنیو چارو وزیر، عصمت الله خان د داخلې وزیر، حبیب الله وردک د مالیې وزیر او محمد حسین خان د خزانو وزیر وټاکل شو او کابینه د صدراعظم تر مشرۍ لاندې جوړه او پر دولتي چارو به خبرې او پرېکړې کېدې.

**ب ـ پوځي برخه**: امیر شېر علي خان د هېواد د خاورې او خپلواکۍ د ساتلو لپاره یو لک کسیز منظم پوځ جوړ کړ د یاد شوي پوځ غړیو ته به تر پوځي زده کړې وروسته د هماغه وخت وسله ورکول کېده او یونیفورم به یې اغوسته او په اتو پوځي مرکزونو کې ځای پر ځای شوي وو.

د وسلو جوړولو صنعت پرمختګ وکړ. توپ، ټوپک، کریچ او باروت تولیدېدل. همدارنګه پوځي اصطلاحات او قوماندې په پښتو ژبه جوړې او په پوځي نظام کې رایجې شوې.

**ج ـ اقتصادي برخه**: د مالدارۍ او کرنې په برخه کې ډېره پاملرنه وشوه او اصلاحات رامنځ ته شول. پخوا مالیات ډېر درانه وو، بزګرانو او مالکانو نه شوای کولای چې هغه ورکړي. هغوی مجبور وو چې د کا ل په لومړیو دریو میاشتو کې د حاصلاتو تر اخیستو دمخه د پېشکي په توګه ورکړي هغه صنایع چې خلکو ورته اړتیا درلوده، صنعتګران یې هڅول کېدل، تر څو کیفیت او کمیت یې پورته لاړ شي.

**د- فرهنګي برخه**: عنعنوي ښوونه او روزنه چې پخوا به په جوماتونو او کورونو کې تر سره کېده، د ښوونځیو په جوړولو سره په عصري ښوونې او روزنې بدله شوه. ملکي او پوځي ښوونځي جوړ شول، د کابل په بالاحصار کې مطبعه تأسیس شوه.د لومړي ځل لپاره د شمس النهار په نامه جریده په میاشت کې په شپاړسو مخونو کې دوه ځلې چاپېده او یو شمېر معلوماتي رسالې او اصولنامې هم چاپېدې. پوستي ټکټ چاپ شو او د پوستي خدمتونو لپاره هر ځای کې پوسته خانې فعالې شوې. د امیر شېر علي خان د وخت اصلاحات د دولتي چارو پر ټینګښت او د اقتصاد په ودې ډېر اغېز وکړ او د خلکو پر ژوند یې د پام وړ تغیر راوست.

په مخکې لوست کې یادونه وشوه چې امېر شیرعلي خان د ځینو دلایلو له مخې په ولایتونو کې د انګلیس دایمي استازی منلی نه وو او تر دې وروسته د انګلیسانو سره په سیاسي اړیکو کې محتاط و، خو د انګلیسانو لپاره د افغانستان او روسیې دوستي ښه پلمه وه چې پر افغانستان تېری وکړي.

سربېره په دې د وليعهد په توګه د شهزاده عبدالله ټاکل، شهزاده محمد يعقوب خان يې دې ته اړ کړ چې د پلار په مقابل کې بغاوت وکړي، ځکه چې هغه د امير په سلطنت کې مهم رول درلود. بله مهمه موضوع دا وه چې د سيستان (د هلمند د اوبو د وېش) او د افغانستان د شمالي سرحدونو د ټاکلو په برخه کې د انګليسانو قضاوت امير ته د منلو وړ نه و. ځکه نو د امير اړيکې له انګليسانو سره خرابې شوې. د پورته ستونزو سره سره، انګليسانو وغوښتل چې له امير شيرعلی خان سره خبرې وکړي، خو امير د انګليس استازی ونه مانه، خو د سلطنت په وروستيو کې حاضر شو چې له انګليسانو سره خبرې وکړي، خو د وليعهد عبدالله جان مړينه او سوګ خبرې وځنډولې، انګليسانو د خبرو ځنډ تيا د روسانو سره د دوستۍ له امله پلمه وګڼله. په همدې وخت کې روسانو (خېوه او مرو) ونيوله او انګليسانو پر بلوچستان حمله وکړه او هغه يې ونيوه. امير شيرعلي خان مجبور شو چې مزار شريف ته لاړ شي، ترڅو له روسانو څخه مرسته واخلي، خو هلته ناروغ او په ۵۸ کلنۍ کې مړ او همهلته خښ شو.

## پر افغانستان باندې د انګليسانو دويم يرغل
## (۱۸۷۸ کال نوامبر- ۱۸۸۰ ميلادي کال اګسټ)

په هند کې د انګليسانو اوږدې خبرې د افغانستان له استازي صدراعظم سيدنور محمدشاه سره کومې پايلې ته ونه رسيدې، ځکه چې انګليسانو په افغانستان کې پر خپلو تلپاتې استازيو ټينګار کاوه چې مخکې د امير شيرعلي خان له خوا نه وو منل شوی او ياد شوي صدراعظم هم دا وړانديز ونه مانه، تر دې وروسته انګليسي ځواکونو جلال آباد او کندهار ونيول او امير له ناچارۍ څخه مزارشريف ته ولاړ، ترڅو له روسانو څخه مرسته وغواړي. امير محمديعقوب خان د پلار پر ضد د بغاوت له امله چې زندان ته اچول شوی و. امير شير علی خان مزارشريف ته تر تګ دمخه د هغه د خلاصون فرمان صادر کړ. چې وکولای شي د هېواد د چارو څخه سرپرستي وکړي.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړنۍ ډله دې د امیر شیرعلي خان پر فرهنګي شخصیت او دویمه ډله دې د سلطنت د نیولو په اړه د یعقوب خان د ونډې په برخه کې معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې ووایي.



## پوښتنې:

۱. د افغان سید جمال الدین اصلاحي برنامه چې امیر شیرعلي خان ته یې وړاندې کړې، کوم مطالب یې درلودل؟

۲. د شمس النهار جریدې څه وخت په خپریدو پیل وکړ؟

۳. د امیر شیرعلي خان پر وخت د هغه نوي تمدن بېلګې بیان کړئ چې افغانستان ته یې لاره پیدا کړه.



## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې پر افغانستان باندې د انګلیس د دویم یرغل د لاملونو په اړه معلومات ترلاسه او په ټولګي کې دې ووایي.

# د امیر محمد یعقوب خان سلطنت (مارچ - اکتوبر ۱۸۷۹ میلادي)


محمد یعقوب خان

شهزاده یعقوب ځرنګه واک ته ورسید. د ګندمک تړون کومې پایلې درلودې، په دې لوست کې به ور سره آشنا شئ.

شهزاده محمد یعقوب خان د خپل پلار د پاچاهۍ پر وخت د نیک نوم خاوند او د پلار د دویمې پاچاهۍ پر وخت د هرات او کندهار په خلاصون کې مهم رول درلود. د افغانستان خلک د هغه په زنداني کېدو او د ولیعهد په توګه د شهزاده عبدالله پر ټاکل کېدو خواشیني وو، ځکه چې شهزاده یعقوب خان یې خوښاوه. سردار محمدیعقوب خان د زندان تر خلاصېدو وروسته په روحي او عصبي ناروغۍ اخته شوی و.

انګلیسانو د افغانستان د نیولو او اشغال لپاره عملاً لاس په کار شوي وو او خلکو یوه پاچا یا مشر ته اړتیا درلوده، ترڅو پر هغه راټول او د انګلیس د یرغلونو مخه ونیسي. ځکه نو امیر محمد یعقوب خان د ۱۸۷۹م کا ل د مارچ په میاشت کې سلطنت ته ورسېد. د سلطنت له پیله یې یوشمېر نومیالي وزیران لکه حبیب الله خان صدراعظم، مرزا محمد خان د بهرنیو چارو وزیر او داوود شاه خان

سپه سالار د انګلیسانو د یوشمېر اجیرانو په وسیله تر ځارنې لاندې نیول شوي وو.

خو محمد (لاټي) په کابل کې د امیر پر ضد فعالیت کاوه او غوښتل یې چې افغانستان انګلیسانو ته تسلیم کړي او د انګلیسانو په مرسته سلطنت ته ورسیږي او د کندهار حاکم سردار شیرعلي خان او د جلال آباد حاکم محمدحسین له انګلیسانو سره د دې لپاره چې په قدرت کې پاتې شي، همکاري درلوده.

انګلیسانو له افغانانو سره له جګړې وېره درلوده، غوښتل یې چې له امیر سره خبرې وکړي ځکه یې نو د امیر خسر سردار یحیی خان چې د امیر د بند پر وخت کې یې کشمیر ته تېښته کړې وه، د هندي منشي بختیار سره د خبرو لپاره کابل ته راغی. انګلیسانو له دوو مطلبونو سره علاقه درلوده، یو د درې ګونو لارو کنټرول (کُرم، بولان، خیبر) او بله دا چې د افغانستان پر بهرني سیاست نفوذ او اغیز ولري. هندي منشي بختیار او امیر ته نږدې یوشمېر سردارانو امیر دې ته اړ کړ چې د تړون د لاسلیک لپاره ګندمک ته سفر وکړي.

په ۱۸۷۹ میلادي کې د (ګندمک) شرموونکې معاهده د انګلیس د استازي(لیوکیوناري) او امیر محمد یعقوب خان ترمنځ لاسلیک شوه. د دې معاهدې پر بنسټ (کُرم، لنډي کوتل تر خیبردرې پورې، سیالکوټ او ځینې نور ځایونه) د برتانوي هند برخه وګرځېدلې او د انګلیس استازي د افغانستان په مهمو ښارونو کې ځای پر ځای شول او کیوناري له خپلو ساتونکو سره کابل ته داخل شو. د کابل خلکو یوځل بیا په هیواد کې د پردیو لاسوهنه ولیده. د انګلیسانو پر ضد یې پاخون خپله دیني او ملي فریضه وګڼله او په ولسي بڼه یې د کیوناري پر کور حمله وکړه او هغه یې وواژه او یوځل بیا د انګلیسانو د مخکې تلنې سیاست (Forward Policy) په افغانستان کې له ناکامۍ سره مخامخ شوه.

د مجاهدینو او مبارزینو مشرانو لکه محمد جان خان وردک، ملا دین محمد مشک عالم، صاحب جان تره کي، سردار محمد ایوب خان او محمد عثمان خان صافي په نورو سیمو کې د انګلیسانو پر ضد یرغلو نه پیل کړل. د دغو مشهورو جګړو څخه یوه هم په کندهار کې د میوند جګړه ده، چې د امیر شیرعلي خان د زوی سردار غازي محمد ایوب خان په سرښندنه د ۱۸۷۹م. کال د جولایي پر ۲۷مه پکې انګلیسانو د میوند په دښته کې سخته ماتې وخوړه او درانه تلفات یې ولیدل چې زموږ په تاریخ کې د افغانانو د ویاړ او انګلیسانو د شرمندګۍ په نامه ثبت شوي ده.



محمد جان خان وردک

د یادوني وړده د افغانستان د تاریخ په اوږدوکي افغانی پیغلو او ښځو په ټولو ټولنیزو چاروکي جوخت له نارینه وو سره سمه ونډه اخیستلې ده. څرنګه چې د ځوانې ملالې مشهوره حماسه چې د میوند په جګړه کې د پام وړ ګډون در لود, کله چې د جګړې په ډګر کي افغان بیرغ لرونکی په شهادت ورسید ملي بیرغ یې په لاس کي ونیو او نه یې پرېښوده چې د غازیانو روحیه ضعیفه شي او دا لنډۍ یې په اوچت غږ د جګړې په ډګر کې وویله. چې د غازیانو جنګي روحیې یې پیاوړې کړې، جګړې شدت وموند او پایله کې مجاهدین بریالي شول.



سردار محمد ایوب خان د میوند د جګړې فاتح

خـــال به دیــار دوینو کېږدم | چې شنکي باغ کې گل گلاب و شرموینه
--- | ---
که په میوند کې شهید نه شوې | خدایږو لالیه بې ننگۍ تـــه دې ســاتینه

همدارنگه د کابل خلکو د انگلیسانو ځواکونه د شیرپور په قرارگاه کې محاصره کړل. ترڅو سردار عبدالرحمن خان له بخارا څخه چاریکارو ته راورسید او انگلیسان په ډېر سخت حالت کې وو. سردار عبدالرحمن خان د خپل سلطنت اعلان وکړ. انگلیسانو د ناچارۍ له مخې د امیر عبدالرحمن خان سلطنت په رسمیت و پېژانده او انگلیسي جنرا ل (رابرتس) کابل یې د امیر عبدالرحمن خان لپاره پرېښود او دویم ځل په افغانستان کې یو مقتدر مرکزي دولت جوړ شو.

## په ټولگي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړنۍ ډله دې د امیر شیرعلي خان واک ته د رسیدو په برخه کې او دویمه ډله دې پر افغانستان باندې د انگلیس د دویم یرغل په اړه یو له بله سره خبرې وکړي.

## پوښتنې

۱. امیر محمدافضل خان څنگه قدرت ته ورسید؟

۲. د امیر شیرعلي خان په دویمه پاچاهۍ کې د هغه د غوره اصلاحاتو او ریفورم څخه یادونه وکړئ؟

۳. د لومړي ځل لپاره کومه جریده چاپ شوه؟

٤. سردار محمد یعقوب خان له انگلیسانو سره کومه معاهده لاسلیک کړه؟

۵. د انگلیس افغان په دویمې جگړې کې د ملي مبارزینو نومونه یاد کړئ.

## له ټولگي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې له مشرانو او فرهنگیانو څخه د گندمک د معاهدې په اړه معلومات ترلاسه او په ټولگي کې دې ووایي.

# د مرکزي دولت ټینګښت (۱۸۸۰- ۱۹۰۱ میلادي)


امیر عبدالرحمن خان

د سردار عبدالرحمن خان رامینځ ته کېدل، د ملوك الطوايفى له منځه ورل، اسلام ته د نورستان د خلکو رابلل، د پنجدې نیول، له افغانستان څخه د انګلیسانو تلفات او وتل دا هغه مفاهیم دي چې په دې لوست کې به ور سره اشنا شئ.

سردار عبدالرحمن خان د امیر محمد افضل خان زوی او د امیر دوست محمد خان لمسی و. نوموړی په کال(۱۸۳۰م. کال) کې زیږېدلی او په پنځوس کلنی کې په ۱۸۸۰م. کال کې سلطنت ته ورسېد.

سردار عبدالرحمن په (۱۸۶۸م. کال) کې د کابل او غزني ترمنځ د امیر شیرعلي خان د قواوو په وسیله ماتې وخوړه او بخارا ته ولاړ. په ۱۸۷۹م. کال کې کله چې انګلیسانو پر افغانستان د دویم ځل لپاره یرغل وکړ، سردار عبدالرحمن خان د انګلیسانو له یرغل څخه خبر شو او افغانستان ته راغی په قطغن او بدخشان کې يې له خلکو سره خبرې وکړې او خلك يې د انګلیسانو پر ضد جهاد ته وهڅول. ولسي لښکر يې جوړ او چاریکارو ته ور داخل شو. هلته يې د سلطنت اعلان وکړ. څرنګه چې انګلیسان د امیر عبدالرحمن خان له پوهې او سیاست څخه خبر وو، نو کله چې عبدالرحمن خان واک ته ورسېد، هغوی ته تشویش او وېره پیدا شوه، ځکه يې نو افغانستان کې خپل شتون لازم نه ګاڼه، په ځانګړې توګه په میوند کې د هغوی ماتې مورال کمزوری کړی و. په همدې وخت کې د جنرا ل رابرتس

قواووې په شیرپور کې محاصره وې. د دې لپاره چې هغوی ته د لومړۍ جګړې پېښنه تکرار نه شي، نو یې هڅه کوله چې د ژمي تر رارسېدو دمخه له افغانستان څخه ووځي. ځکه یې نو د عبدالرحمن خان حکومت په رسمیت وپېژانده، کابل یې امیر ته تسلیم او د خپلو قواوو په وتلو یې پیل وکړ.

کله چې امیر عبدالرحمن خان په (۱۸۸۰م.) کال کې د دولت چارې ترلاسه کړې، له ډېرو سختو حالاتو سره مخامخ و، ځکه چې د افغانستان خلکو د انګلیسانو د حملو له امله ډېر زیانونه لیدلي وو. د بېلګې په توګه: په افغانستان کې اداري نظم او مرکزي حکومت له منځه تللی و، ملکي او پوځي جوړښت له منځه تللی وو. د افغانستان په مهمو ښارونو کې د صنعت او کسبونو، زراعت او مالدارۍ مرکزونه او د اوبو لګولو سیستم زیانمن شوی و او ملي اقتصاد او فرهنګ په ټوله مانا له منځه تللی او په ټول هېواد کې ملوك الطوایفي رامنځ ته شوې وه. د خانانو او ملاکینو له خوا درنې او ملا ماتوونکې مالیې پر بزګرانو وضع شوې وې چې بېوزلو خلکو یې د ورکولو توان نه درلود.

امیر عبدالرحمن خان د دې لپاره چې پر ټولو ستونزو بریالی شي. دوه پروګرامه یې تر لاس لاندې ونیول، د یوه مرکزي سراسري دولت جوړول او بل په اداري او پوځي برخو کې اصلاحات. امیر عبدالرحمن خان د خپلو اصلاحاتو په تطبیق کې دومره جدي و چې هېڅ ډول خنډ یې د خپلو اصلاحاتو په تطبیق کې په پام کې نه نیوه.

امیر عبدالرحمن خان د خپل نوی تشکیل د جوړولو لپاره د امیر شیرعلي خان د وخت د کابینې تشکیل ونه مانه، ځکه چې پر هیچا یې باور نه درلود. په دولت کې یې خپلواکې اداري جوړې کړې او په خپله د صدارت، دفاع، داخلې، بهرنیو چارو وزارت او د ټولو وزارتونو په راس کې و. دولتي مامورینو په خپلو چارو کې درانه مسؤلیتونه درلودل، ترڅو خپلې دندې ښې ترسره کړي. چې پرته له دې د جدي پوښتنې لاندې نیول کېدل.

امیر عبدالرحمن خان د ۱۸۸۵- ۱۸۸۶م. کلونو تر مینځ په اصلاحاتو لاس پورې کړ. په پوځي برخه کې یې ۹۶ زره کسیز وسله وال منظم پوځ جوړ کړ چې سپاره او پیاده قطعات یې درلودل او د پوځ د سپاهیانو ترڅنګ یې د خانانو له زامنو څخه یو بل ځواك جوړ کړ چې د شاهي ګارد یا (بای بچه ها) په نامه یادېدل. د مال شمېرنې، پوستې، رهدارۍ (پاسپورت) کوتوالي (امنیه او پولیس) د مالیاتو د حصول،

معاش، سکوکو او په لسګونو نورو فرعي ادارو دفترونه یې جوړ کړل، د نومورو فعالیتو تر څنګ د امیر عبدالرحمن خان پروګرامونه په لاندې درې برخوکې خلاصه کیږي.

**الف- د کورنیو شورشونو له منځه وړل**: په مخکې لوست کې یاده شوه کله چې امیر عبدالرحمن خان سلطنت ته ورسېد، افغانستان د انګلیسانو تر یرغل لاندې و او مرکزي دولت شتون نه درلود. د افغانستان په ډیرو سیمو کې ملوک الطوایفي وه، نو خلک په داسې حالت کې اوسېدل چې په ټولنه کې خوندیتوب، قانون او عدالت نه و او خلک له ډېرو ستونزو سره مخ و. د امیر عبدالرحمن خان یوه مهمه موخه دا وه چې یو مرکزي حکومت جوړ کړي، ترڅو قانوني دولت تشکیل او ملوک الطوایفي له منځه یوړل شي، ځکه د داسې حالت دوام خطرناکې پایلې درلودې، حتی د دې ویره وه چې افغانستان تجزیه شي، ځکه نو امیر عبدالرحمن خان دې کار ته جدي پاملرنه وکړه. څرنګه چې سیمه ییزو واکمنانو خپلې ګټې په خطر کې لیدلې، نو ځکه نوی جوړ شوی حکومت په ټول افغانستان کې له یولړ ګواښونو او مخالفتونو سره مخامخ شو. لکه د بلخ، هزاره جاتو، شینوارو، منګلو، بلوڅانو، کړوخیلو، پنجشیریانو، نجرابیانو، ځدراڼو، جمشیدیانو او د میمنې د خلکو پاڅونونه او شورشونه چې په یادو شویو ځایونو کې د قوې په استعمال سره له منځه لاړل او ټول ولایتونه د مرکزي حکومت تر کنټرول او واک لاندې راغلل.

**ب- نورستان**: نورستان د افغانستان په شمال ختیځ کې یوه صعب العبوره سیمه ده چې د هندوکش یوه ډېره ګوښه لمنه ده. پخوانی نوم یې (بلور یا بولر) دی چې پخوا د کافرستان په نامه یادېده. د ډیورنډ تر معاهدې دمخه چې په وروسته لوست کې به د هغې په اړه معلومات درکړل شي، (چترال) او (ګلګت) له نورستان سره یوځای وو او پراخه سیمه یې تشکیلوله. یوناني سکندر، ګورکاني امیر تیمور او ظهیرالدین محمد بابر غوښتل چې دې سیمې ته لار پیدا کړي، خو د سړې هوا، سختو درو او له واورو ډکو غرونو له امله ونه توانېدل چې هلته لاړ شي. د دې ځای خلک بت نمانځونکي وو، د خپلو نیکونو دین او رسوم یې ساتلي او سیمه ییزه خپلواکي یې درلوده.

په ۱۸۹۱م. کال کې امیر عبدالرحمن خان دې سیمې ته ځیر شو. سپاه سالار غلام حیدر خان څرخي ته یې چې د ننګرهار او لغمان قوماندان او والي و، هدایت ورکړ چې نورستان ته د تګ یوه

مقدمه جوړه کړي. لومړی غلام حیدر خان څرخي د نورستان د یوځایوالي لپاره د مواصلاتي لارو د جوړولو اقدام وکړ او د نورستان خلکو ته یې ابلاغ کړه چې حکومت ستاسې د یوې سیمې څخه بلې ته تګ راتګ د اسانتیا لپاره د لارو په جوړولو سره ستاسې ستونزې رالږوي. پخوا له دې چې سپهسالار نورستان ته تګ پیل کړي، خپل عسکر یې په بریکوټ کې ځای پر ځای کړل او د نورستان له خلکو سره یې نیکې اړیکې ټینګې کړې. خلکو له هغه سره تګ راتګ پیل کړ او یو شمېر خلک د اسلام په دین مشرف شول. خو د (کافور) او ځینو نورو سیمو خلکو اسلام ونه مانه، خو د دولت تابعیت یې قبول کړ.

په ۱۸۹٦م. کال کې سپهسالار څرخي تر اسمار او د نورستان تر خولې پورې سړک جوړ کړ او بله لاره د نورستان څخه تر بدخشانه پورې بشپړه شوه. د سړک تر جوړېدو وروسته نوموړي خپل عسکر نورستان ته داخل کړل. د عسکرو په رسېدو سره د نورستان خلک دوه ډلې شول. لومړۍ ډلې د سپهسالار اطاعت وکړ او دویمې ډلې په دفاع پیل وکړ او غرونو ته وختل. په هغه سخته جګړه کې چې د نورستان د ساتونکو او دولتي ځواک ترمنځ په (کلوم) کې پیښه شوه، ۲۰۰ کسه دولتي عسکر په کې ووژل شول او (۲۳۰۹) کسه ژوندي ونیول شول چې په عزت سره کابل ته یوړل شول او هغوی ته خوراک، پوښاک او د اوسیدو ځای په پام کې ونیول شو. د دولت قواوو د نورستان ډېر ځایونه ونیول، چې امنیت یې په کې ټینګ کړ. بتخانې ورانې شوې او پر ځای یې د جوماتونو جوړول پیل شول او د ۱۹ په شاو خوا کې د لرګیو مجسمې او یو شمېر غشي او لیندۍ کابل ته راوړل شول. له لوګر، لغمان، پروان او کاپیسا څخه د دیني علومو ښوونکي نورستان ته یوړل شول، ترڅو د نورستان خلکو ته اسلامي زده کړې، زده کړي، د نورستان ټول سفر او فتحې اته میاشتې ونیولې. ځکه چې په لومړیو کې دا فکر کېده چې د نورستان نیول به ډېر وخت وغواړي، خو د سپهسالار غلام حیدر خان د پوهې او تدبیر له امله نورستان له مرکزي حکومت سره یوځای او خلک یې د اسلام په سپیڅلي دین مشرف شول او له کافرستان څخه یې نوم په نورستان بدل شو.

## ج- د پنجدې نیول

د افغانستان په شمال کې روسي امپراتورۍ، برتانوي هند په ختیځ او سویل کې، ایران په لویدیځ کې موقعیت درلود. امیر عبدالرحمن خان به تل د برتانوي هند او تزاري روسیې له خوا له تهدید سره مخ و.

سردار محمد ایوب خان او سردار محمد اسحق خان د امیر دوه دښمنان چې لومړنی یې انګلیسانو او دویم یې روسانو حمایه کاوه. که څه هم د ایران دولت د امیر لپاره د فشار وسیله نه وه. خو دا یو رواج ګرځیدلی و چې ناراضي سردارانو به ایران ته پناه وړله. خو امیر له روسیې سره د اړیکو په برخه کې له احتیاط څخه کار اخیسته او هڅه یې کوله چې له روس سره ټکر ونه کړي. د افغانستان دولت د برتانوي هند او تزاري روسیې ترمنځ د بفر (Buffer) یا حایل حیثیت درلود. د مرکزي آسیا د سیمو تر نیولو وروسته به روسانو بهانې جوړولې او غوښتل یې چې د افغانستان سیمو ته مخکې تګ وکړي.

د روسانو لومړنی حرکت (مرو) ته د شپږ زره روسانو راوړل وو. د ۱۸۸۵ م. کال د مارچ په میاشت کې اوضاع دومره خرابه شوه چې د انګلیسانو ملکې د روس له تزار سره تماس ونیو او له تزار څخه یې وغوښتل چې د افغاني او روسي عسکرو د جګړې مخنیوی وکړي او په انګلیسي حکومت کې مخالفو ګوندونو پر حکومت انتقاد وکړ چې د روسانو د مخکې تګ مخه ولې نه نیسي. په همدې وخت کې روسانو افغاني عسکرو ته اخطار ورکړ چې د (کشک) په سیمه کې خپل سنګرونه پرېږدي. انګلیسانو د روسانو د یرغل په وړاندې ځان بې تفاوته کړ او روسانو پر پنجدې یرغل وکړ. جنرال غوث الدین خان په میړانه وجنګیده، تر هغې چې له خپلې لږې قوې سره ووژل شو او پنجده روسانو ونیوله.

امیر عبدالرحمن تر ۲۱ کالو پاچاهی د ۱۹۰۱ م. کال د اکتوبر په لومړۍ نیټه د ۷۱ کالو په عمر د نقرس د ناروغۍ له امله له نړۍ سترګې پټې او د کابل په بوستان سرای اوسني زرنګار پارک کې خاورو ته وسپارل شو. د هغه د حکومت پر وخت، په خواشینۍ سره د ښوونې او روزنې، کلتور او صنعت

په برخه کې کوم کار ونه شو. د امیر عبدالرحمن خان د هڅو له کبله مرکزي دولت بیا راژوندی او هغه ملوك الطوایفي چې د شهزاده ګانو د بې اتفاقۍ او د انګلیسانو په استعماري دسیسو سره رامنځته شوې وې له منځه یوړل شوې. خو په خواشینۍ سره د ډیورنډ د معاهدې د لاسلیك له امله افغانستان په ختیځ او سویل کې د خپلې ځمکې یوه برخه له لاسه ورکړه.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړنۍ ډله دې د امیر عبدالرحمن خان د واك ته د رسیدو او دویمه ډله دې د نورستان د یوځایوالي په اړه مباحثه وکړي.



## پوښتنې

۱. روسانو پنجده څنګه ونیوله؟
۲. د بفر (Buffer) پالیسي د کومو هېوادونو له خوا په افغانستان کې عملي شوه؟
۳. امیر عبدالرحمن خان په کوم کال کې سلطنت ته ورسید؟
٤. د امیر عبدالرحمن خان شخصیت په لنډه توګه معرفي کړئ.



## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د امیر عبدالرحمن خان د اصلاحاتو او د اداري نظام د ټینګښت په اړه معلومات ترلاسه او په ټولګي کې دې ووایي.

# د معاهدو لاسلیک

په دې لوست کې به د امیر عبدالرحمن خان له مجبوریتونو، د ډیورند له معاهدې او د هغې له پایلې سره پېژندګلوي ترلاسه کړئ.

## د ډیورنډ معاهده

مخکې له دې چې انګلیسان د ډیورنډ تړون مطرح کړي، د افغانستان په ختیځو او سویلي پولو کې اوضاع مغشوشه کړه، د قومونو او قبایلو په منځ کې یې روپۍ او وسلې ویشلې خلک به یې په جګړې اچول او بیا به یې په دې بانه چې منځګړیتوب کوي او تشنج له منځه وړي، نو ځان به یې د یوه خیرخواه او مصلح په توګه معرفي کاوه او د امیر عبدالرحمن خان او د افغانستان د دولت د بې اعتباره کولو لپاره به یې له ډول ډول دسیسو او پروپاګنډ څخه کار اخیسته.

په ۱۸۹۳م. کال کې یو شپږ کسیز هیئت چې مشري یې د بریتانیا د بهرنیو چارو سکرتر (مارتیمر ډیورنډ) کوله او (الیس، ډاکتر فن، سمیت، مکمهان، ډانلډ او کلارک) په کې شامل وو، د خیبر له لارې افغانستان ته راغلل. په داسې حا ل کې چې انګلیسي قواوې د افغانستان په ختیځو او سویلي پولو کې ځای پر ځای شوې وې، یاد شوی هیئت له امیر عبدالرحمن خان سره د حشمت خان په باغ کې لنډه کتنه وکړه او د خبرو په پیل کې یې پرته له سریزې او په ډېره جدي توګه امیر عبدالرحمن خان ته وویل: امیر مجبور دی چې ترتیب شوی تړون لاسلیک کړي، په بل صورت کې به د دواړو دولتونو ترمنځ اړیکې پرې او بناییې جګړه پیل شي. امیر په ډیر سخت حالت کې راګیر شو او د امیر تېروتنه دا وه چې د مذاکراتو  او د هغه د متن په اړه یې د افغانستان خلکو ته معلومات ورنه کړل او د معمول په څېر پرته د خلکو له رایې او نظره یې یاده شوې معاهده لاسلیک کړه.

## د ډیورنډ د کرښې مواد

۱. د افغانستان ختیځ او سویلي سرحد له واخان څخه پیل شوی او د ایران تر سرحده دوام پیدا کوي چې په ترتیب شوې نقشه کې ښودل شوی او د نوموړي تړون سره ضمیمه ده.

۲. د برتانوي هند دولت په هغو ځمکو کې چې په افغانستان پورې اړه لري، هیڅ وخت لاسوهنه نه کوي او د افغانستان دولت هم د هندوستان په ځمکو کې لاسوهنه نه کوي.

۳. د (اسمار سیمې او پورته سیمه یې د چنګ تر سیمې پورې) په افغانستان پورې اړه لري او د افغانستان دولت هیڅ وخت د (سوات، باجوړ، چترال او ارنوی سیمه کې) مداخله نه کوي او د

(برمل) بشپړ سیمه په افغانستان پورې اړه لري او د افغانستان حکومت د (وزیرو او داوړو) په سیمو ادعا نه شي کولای.

٤. یاده شوې سرحدي لیکه به د بریتانوي او افغاني هیئت په واسطه له نقشې سره سمه په نښه شي.

٥. د چمن په سیمه کې چاونۍ (پوځي مرکز) چې نوی جوړ شوی او د اوبو هغه برخه چې په (سرکي ننګي) کې چې افغانستان مخکې خریداري کړې، له هغې څخه تیر او د بریتانیا دولت ته دې وسپاري. په دې سیمه کې به د جلاوالي لیکه په لاندې ډول وکښل شي، د خواجه عمران د غره د سلسلې له سر څخه (شاه کوتل) ته نږدې چې د انګریز ملکیت دی، داسې امتداد لري چې (مرغه چمن) او (شیراوبه Shiroba) چینه مستقیماً د (نوي چمن کلا) او افغاني تانې چې په (لشکروند) مشهوره ده، په منځ کې تیریږي. وروسته یاده شوې لیکه مستقیماً د (ریل سټیشن او د بلاک د کوڅې په منځ کې تیریږي او بیا د سوېل لوري ته تاویږي چې خواجه عمران د غرونو لړۍ په کې شاملیږي او د (ګواشه Gowasha) تانه د انګریز په ملکیت کې راځي او هغه لاره چې د (شوراوک) په لوري د (ګواشه) سویل او لویدیځ ته ځي، په افغانستان پورې اړه لري، برتانیه به د دې لارې تر نیمایي پورې مداخله نه کوي.

٦. د دې ژمنلیک شرایط د برتانیې او افغانستان ترمنځ د قبول وړ دي، کله چې پر کومه فقره کوچنی اختلاف پیدا شي، د دوستانه خبرو له لارې به حل او فصل شي.

٧. څرنګه چې د هند برتانوي دولت د جناب امیر صاحب د هغه نیک نیتۍ څخه چې د هند د برتانوي دولت په برخه کې لري پوره ډاډمن دی، نو هیله لري چې افغانستان د خپلواکۍ په حالت کې ووینې او کله چې افغانستان غواړي، چې وسله رانیسي، د برتانیې دولت کوم اعتراض نه لري او هم د دې قرارداد د لاسلیک له امله چې افغانستان ته به هر کال دولس لکه روپۍ ورکول کیدې، د دې تړون له لاسلیک څخه وروسته شپږ لکه نورې اضافه کیږي.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي او د ډیورنډ د معاهدې پر ګټو دې یو له بله سره خبرې اترې وکړي او پایله دې د ډلو د استازو په واسطه ټولګي کې وړاندې شي.

## پوښتنې

١. د ډیورنډ معاهده د کومو شخصیتونو ترمنځ لاسلیک شوه؟

٢. د ډیورنډ معاهده په کوم کال ترسره شوه؟

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې له مشرانو او فرهنګیانو څخه د ډیورنډ د معاهدې د پایلو په برخه کې معلومات ترلاسه او په ټولګي کې دې ووایي.

# د امير حبيب الله خان سلطنت (۱۹۰۱- ۱۹۱۹ ميلادي)


امير حبيب الله خان

د امير حبيب الله خان واک ته د رسېدو، د نومورړي د حکومت مهمې کړنې او د هغه د قتل لاملونه هغه مطالب دي چې په دې لوست کې به ورسره آشنا شئ.

سردار حبيب الله خان د امير عبدالرحمن خان زوی و. کله چې امير عبدالرحمن خان د امير شيرعلي خان له خوا د کابل او غزني ترمنځ په شش گاو (شېږ قلاع) کې ماتې وخوړه، په بخارا کې يې پناه واخيسته او سردار حبيب الله خان په ۱۸۷۲م. کال په سمرقند کې وزېږېد. هغه په ۲۸ يا ۲۹ کلنۍ کې په ۱۹۰۱م. کا ل د پلار له مړينې څخه وروسته واک ته ورسېد.

امير حبيب الله خان په طبيعي توگه آرام، هوښيار، نوښتگر او د پرمختگ پلوی و. که څه هم له عيش, عشرت او له مجلل دربار سره يې مينه درلوده. امير حبيب الله خان د واکمنۍ پر وخت په څو ځېرو کې ځرگند شو. په لومړيو کې يې په خپله وينا کې خلکو ته وويل: افغانستان اسلامي ټولنه ده او اسلامي ارزښتونه دې په کې رعايت شي. لکه څنگه چې يې د کابل د خرابات په سيمه کې د رقاصو په نڅا بنديزو لگاوه او دغه عمل يې غير شرعي وباله او د مجرمينو په جزايي قانون

کې يې هم بدلون راوست. د بېلګې په توګه: د جرم کولو په صورت کې د بدن د غړيو غوڅول منع شول او په بدل کې ورته بېلابېلې جزاوې وټاکل شوې، خو د هغوی د آزادۍ په اړه يې عمل ونه کړ. رېندول، د غلامانو او وينځو پلورل منع شول. له څلورو څخه ډېرې ښځې په نکاح کول يې غير شرعي حکم اعلام کړ.

امير حبيب الله خان يو فرهنګي څېره وه. او ټينګار يې کاوه چې ټولنه پرته د ښوونې او روزنې څخه پرمختګ نه شي کولای. هغه کار چې د هغه په وخت کې ترسره شو، د معارف بنسټ ايښودنه او د نوي فرهنګ معرفي وه. په ۱۹۰۳م. کې لومړنی ښوونځی د حبيبيې د ليسې په نامه جوړ شو. چې په دې ښوونځي کې پر ديني مضامينو سربېره نور مضامين لکه: تاريخ، جغرافيه، رياضي، کيميا، فزيک، هندسه، مثلثات، حکمت او حفظ الصحه تدريسيدله او يو څو نور لومړني ښوونځي د ښار په ځينو برخو کې هم جوړ شول.

په پوځي برخه کې هم د حربي په نامه ښوونځی جوړ شو، چې پر علمي مضامينو سربېره ارکان حرب په کې هم تدريسيده، چې د نوموړو مضامينو تدريس د هندي، ترکي او افغاني استادانو په وسيله ورکول کېده.

د مطبوعاتو په برخه کې د کابل په ښار کې يوه مطبعه جوړه شوه چې ماشينونو يې د بخار د قوې په وسيله فعاليت کاوه او په نوموړې مطبعه کې ځينې دولتي لايحې او جريدې چاپيدلې. د لومړي ځل لپاره دوه جريدې د (سراج الاخبار) او (سراج الاطفا ل) په نامه تأسيسې شوې چې مسؤول مدير يې محمود طرزي و، د هغه تر نظر لاندې نوموړې جريدې چاپ او خپرېدلې چې د خلکو د ويښېدلو او د خپلواکۍ غوښتنې د حس په ژوندي کولو کې يې مهم رول درلود او محمود طرزي ته د افغانستان د مطبوعاتو د پلار لقب ورکړل شو.

د کابل غزني او کابل جلال آباد او لغمان لاره جوړه شوه او د لومړي ځل لپاره يوشمېر موټرې

د ورځو راوړلو لپاره له يوې کمپنۍ څخه چې (مدلر) نومېده، له بمبيي څخه دولت خريداري کړې او هم څو کسه د موټرو د ترميم د زده کړې لپاره هندوستان ته واستول شول.

د نساجۍ په برخه کې د وړۍ وېدلو په نامه يوه فابريکه جوړه شوه چې د بخار د قوې په وسيله يې فعاليت کاوه. په کال کې به يې پنځوس زره عسکرو ته يونيفورم برابراوه او پاتې توليدات يې بازار ته وړاندي کېدل. د اوبو د برېښنا يوه وړه فابريکه په جبل السراج کې جوړه شوه. د توليد کچه يې لږه وه چې يوازې ارګ يې روښانه کاوه. وروسته يې توربينونه ډېر شول چې د کابل ښار ته يې برېښنا ورکوله. د کرنې په برخه کې د هغو ځمکو لپاره چې اوبه يې لږې وې، يوشمير بندونه او نهرونه جوړ شول.

د امير حبيب الله خان د سلطنت مهمې پېښې د ځدراڼو، منګلو، احمدزيو او د کندهار د خلکو پاڅونونه وو، دا پاڅونونه د دولت په لوړ تدبير سره غلي شول. نړيواله پېښه چې د امير حبيب الله د حکومت سره هم مهاله وه لومړۍ نړيواله جګړه وه. د آلمان د حکومت يو هيئت افغانستان ته راغی او د دواړو هېوادونو په دوستۍ يې ټينګار کاوه، ترڅو په دې وسيله افغانستان د (محور) دولتونو يانې له هغو دولتونو سره چې له آلمان سره ملګري وو يوځای کړي. او انګريزانو له دې څخه وېره درلوده چې افغانستان له محور دولتونو سره يوځای نه شي. ځکه يې نو له روسانو سره معاهده وکړه. د يادې شوې معاهدې پر بنسټ افغانستان په لومړۍ نړيوالې جګړې کې خپل ناپيلتوب اعلان کړ.

امير د خپل سلطنت په ورستيو کلونو کې د خلکو, روښانفکرانو او مشروط غوښتونکو کرکه خپل ځان ته را وپاروله. چې په دې توګه د هغه د حکومت د سقوط زمينه برابره شوه.

د ۱۹۱۸م. کال په پای کې امير د خپلو ټولو درباريانو سره د تفريح لپاره له جلا ل آباد څخه د ماهيانو د ښکار لپاره د لغمان (کله ګوش) سيمې ته ولاړ او هلته د فبرورۍ د مياشتې په شلمه شپه د يوه نامعلوم

کس له خوا د تومانچې په ډز ووژل شو. جسد يې جلال آباد ته يوړل شو او خاورو ته وسپارل شو.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوه ډلو وويشل شي لومړۍ ډله دې د امير حبيب الله خان واک ته د رسيدو د څرنګوالي په اړه او دويمه ډله دې د نومورې د شخصيت په اړه خپلو کې خبرې او اترې وکړي او پايله دې په ټولګي کې وړاندې کړي.



## پوښتنې:

۱. امير حبيب الله خان په کوم کال کې سلطنت ته ورسېد؟

۲. لومړنۍ جريده په کوم نامه او په کوم کال خپره شوه؟

۳. لومړنۍ د اوبو بريښنايي فابريکه چېرته او په څومره ظرفيت يې په فعاليت پيل وکړ؟



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت:

زده کوونکي دې د امير حبيب الله خان د اصلاحاتو په برخه کې له مشرانو او لويانو څخه معلومات ترلاسه او په ټولګي کې دې ووايي.

# د مشروطیت نهضتونه

د مشروطیت خوځښتونه څرنګه را منځ ته شول، موخې يې څه وي او څه ډول راتلونکي سره مخ شول؟ دا هغه مطالب دي چې په دې لوست کې به ورسره پيژندګلوي ترلاسه کړئ.

د امير حبيب الله د سلطنت په پيل کې د لومړي ځل لپاره معارف تاسيس او نوی فرهنګ پيل شو. يوشمېر محدود ښوونځي جوړ او د نوي فرهنګ د خپراوي په برخه کې دوه ورځپاڼې چاپ او په مطبعه کې د کتابونو چاپول پيل شول.

امير حبيب الله خان په کال ۱۹۰۵م. کې له انګريزانو سره د تړون تر لاسليک وروسته خپل ځان ډاډه احساساوه، خو د هغه تړون له مخې چې د لومړۍ نړيوالې جګړې په پيل کې روس او انګليس کړی و، انګريزانو دا وېره درلوده چې افغانستان د (محور) د ځواکونو يا د هغو دولتونو سره چې له آلمان سره متحد وو، يوځای نه شي. ځکه نو انګريزانو افغانستان تر خپلې حمايې لاندې راوست، چې له دې سره د افغانستان خپلواکي سلب شوه.

د امير حبيب الله د سلطنت په لومړيو کې اداري وضع ښه وه او خلکو دا فکر کاوه چې ژر به نوره هم ښه شي. خو وروسته د افغانستان اداري صلاحيتونه د يو څو محدودو کسانو لاسونو ته ورغلل. اداري

مراجع ملوثې او اداري فساد خپل اوج ته ورسيد او امير د دربار په عيش و عشرت کې ډوب او د هيواد له حالته ناخبره و. د ټولنې د پرمختيا ټيټوالی، د خپلواکۍ له منځه تلل، د اداري فساد ډېرېدل، بې عدالتي او ملاماتوونکو ماليو د خلکو ستونزې لاپسې ډيرې کړې. روښانفکرانو چې به د هېواد بحراني حالت ليده، نو خوابدي به وو د دې ستونزې د حل په لټه کې شول چې د افغانستان خلکو ته څنګه خلاصون ورکړي. په پای کې يې پريکړه وکړه چې د دولت مطلق العناني په مشروطيت بدله کړي.

روښانفکران د دربار د اصلاح غوښتونکو شا اوخوا راټول شول او په دولت کې د اصلاحاتو غوښتونکي شول. د دربار روښانفکران عبارت وو له، محمد ولي خان بدخشاني، ميرزمان خان، مير ياربيک خان دروازي، پادشاه ميرخان لوګري، نظام الدين خان ارغنديوال او لعل محمد خان کابلي. وروسته يوه ډله ځوانان لکه جوهرشاه خان، لعل محمد خان، پادشاه ميرخان، نظام الدين خان او ميرزمان خان له دربار څخه بهر د ديموکراتانو له سياسي کړۍ سره يو ځای شول. بهرني کتابونه او جريدې به يې ترلاسه کولې او د کورنيو او بهرنيو سياسي او ټولنيزو مسايلو سره به يې علاقه پيدا کوله. د حبيبيې ليسه د روښانفکران په يوه سياسي مرکز بدل شوې وه. د روښانفکرانو په منځ کې د راډيکال ډله، يا افراطيون هم وو، چې د کودتاه غوښتونکي هم وو. بلې ډلې روښانفکرانو په يوازې توګه د دربار او حبيبيې ليسې څخه بهر فعاليت کاوه.

د دربار روشنفکرانو د حبيبيې ليسې څخه بهر، او د حبيبيې ليسې ښوونکو او کارکونکو سره ائتلاف وکړ او يو سياسي ګوند يې د (جمعيت سري ملي) په نامه جوړ کړ، چې د نوموړي ګوند په مرامنامه کې د مطلق العنان حکومت بدلون په مشروطيت، د خپلواکۍ ګټل، متوازن معارف او په افغانستان کې د نوي فرهنګ خپرېدل شامل و.

ياد شوی ګوند په يو لس کسيزه ډله د ګوند د مؤسس او مشر په وسيله وويشل شو. د دې لپاره چې د ګوند فعاليتونه ښکاره نه شي، د ګوند غړيو يو بل حتی نه پيژندل. ګوندې جلسې به په ډيره پټه توګه د ميلمستيا په نامه د ډلو د مشرانو له خوا جوړيدې او په جلسو کې به د ګوند د چارو په برخه کې پريکړې

کېدې. عمومي جلسې به تر اوږدې مودې وروسته کېدې او نوې پرېکړې به په کې ترسره کېدې.

دګوند د يوې غوره کړې رئيس تاج محمد خان بلوڅ پغماني و جوهرشاه خان غوربندي او مير سيد قاسم خان لغماني او دګوند د هندي مسلمانانو غړي، چې ټول يې د حبيبيې د ليسې ښوونکي وو، دګوند په يوې جلسې کې يې پرېکړه وکړه، مخکې له دې نه چې امير دګوند له شتون څخه خبر شي، بايد هغه وهڅول شي چې پخپله د فرهنګ په خپرېدو او د سرتاسري معارف په خپراوي کې همکاري وکړي. له تاج محمد خان سره دګوند د مرامنامې يوه کاپي وه چې له نورو اسنادو سره يې په خپل کور کې ساتله. ورور يې محمد شريف چې د سياسي افکارو د مخالفينو له ډلې او د دولت له پلويانو څخه ګڼل کېده، له تاج محمد خان سره په يوځای کې اوسېده. نوموړي هغه مصوبه د تاج محمد خان له اسنادو څخه ترلاسه کړه او هغه يې امير حبيب الله ته وړاندې کړه.

د ۱۹۰۹م. کال په ژمي کې کله چې امير په جلال آباد کې په تفريح بوخت و، محمد عظيم خان د حربي فابريکې کارمند او د شهزاده کبير خان خصوصي ښوونکی ملا منهاج الدين، دګوند د ټولو غړيو فهرست ترتيب او له يو راپور سره يوځای امير حبيب الله خان ته وړاندې کړ او په راپور کې داسې ويل شوي وو، چې د (حزب سري ملي) موخه د امير وژنه او د مشروطه حکومت جوړول دي او په کابل کې داسې آوازه خپره شوې وه چې دا هرڅه د هغو هنديانو په وسيله رامنځ ته شول چې دګوند په دننه کې وو. خلکو دا استدلال کاوه چې دګوند هندي غړيو غوښتل چې لومړی د مشروطيت او خپلواکۍ غوښتنې نهضت له منځه يوسي او بيا افغانستان د انګليسانو په ګټه وروسته پاتې کړي او امير د معارف د تاسيس او د نوي فرهنګ د خپرېدو څخه زړه ماتی کړي. او په ياد شوي فهرست کې هغه مشروطه غوښتونکي چې د افغانستان په تاريخ کې د لومړي ځل لپاره راښکاره او ځلوېښت کسه وو، په خواشينۍ سره اعدام او ځينې بنديان شول. وروسته له څه وخته ځينې يې آزاد شول، خو مشروطه غوښتونکي په ټوله معنا ونه ځپل شول، بيا يې ورې ډلې جوړې کړې چې په پټه يې فعاليت کاوه.

په (۱۹۱۸م.) کې د مشروطه غوښتونکو تر ځپلو وروسته (عبدالرحمن لودين) د سراج الاخبار

محرر او د ګوند غړي چې راډيکال يا افراطي شخص و، د امير حبيب الله خان د کليزې په شپه په شوربازار کې د قاضي کوڅې د يوه دوکان په بام له تومانچې سره کمين نيولی و او د امير د سپرلی موټر ته يې انتظار کاوه ( په هغه وخت کې شاه معمولاً د جشن او د کابل په چراغان شپو کې د ارګ له بازارونو او د شوربازار له چوک څخه تېرېده) همدا چې د امير موټر د دې دوکان تر څنګ راورسېد، عبدالرحمن د امير په موټر ډز وکړ، خو کارتوس د موټر په پورته ځای ولګېد او موټر په چټکی تېر شو او امير وژغورل شو. په سبا شپه عبدالرحمن لودين امنيتي قواوو ونيو او په ارګ کې زنداني شو. امير د هغه او د ملګرو د اعدام مسؤوليت په غاړه وانه خيست او د ۱۹۱۹م. کال په سياسي اوښتون کې عبدالرحمن لودين له نورو روښانفکرانو سره يوځای له زندان څخه آزاد شول او د امانيه دورې په مامورينو کې مقرر شو.



## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي. لومړنۍ ډله دې د مشروطيت د زمينو د رامنځ ته کېدو او دويمه ډله دې د دې نهضت د موخو په برخه کې يو له بل سره خبرې وکړي او پايله دې يې په ټولګي کې ووايي.



## پوښتنې

۱. د مشروطيت نهضت چا رهبري کاوه؟

۲. د دې نهضت مشهور غړي څوک وو؟

۳. امير حبيب الله خان د دې نهضت له موخې څنګه خبر شو؟



## له ټولګي څخه د باندې فعاليت

زده کوونکي دې منابعو او ماخذو ته په لاس رسي سره د نهضت د ناوړه ټکونې په اړه معلومات ترلاسه او په ټولګي کې دې ووايي.

# د لومړي څپرکي بيا کتنه

له يوې اوږدې مودې وروسته افغانستان د بهرنيانو د لاسوهنو له امله تجزيه او ووېشل شو. خو په ۱۷٤۷م. کال کې د افغانستان د دولت مؤسس احمدشاه بابا په وسيله جوړ شو. کرنه او مالداري چې د افغانستان د اقتصادي منابعو څخه وه، ډېره زيانمن شوې وه، چې د مرکزي دولت تر جوړېښت وروسته يې يوځل بيا وده وکړه او دوديزو صنايعو چې د خلکو ورځنۍ اړتياوې يې پوره کولې، يوځل بيا په فعاليت پيل وکړ. سوداګري رامنځ ته شوه او اقتصادي وضع ښه شوه. عنعنوي ښوونه او روزنه په مدرسو او جوماتونو کې ترسره کېده، چې يوشمير مدرسې په ټول افغانستان کې جوړې شوې او (٤٥) کاله يې د احمدشاه بابا او د هغه د زوی تيمورشاه د سلطنت په دوران کې په ټول افغانستان کې رواج درلود. خو د نوي فرهنګ د خپراوي په برخه کې د ابداليانو د سلطنت تر پايه کوم ګام وانه خيستل شو. له ۱۸۳۹- ۱۸٤۲ م. کاله پورې افغانستان د انګريزانو تر يرغل لاندې راغی او بيا په افغانستان کې د انګريزانو تر ماتې وروسته د وزير فتح خان د ورونو د بې اتفاقۍ له امله د امير شيرعلي خان د سلطنت تر پايه پورې په هيواد کې ګډوډي او ملوک الطوايفي حاکمه شوه. خو د امير شيرعلي خان د سلطنت په وخت کې مرکزي دولت جوړ او اجرائيه قوه چې صدراعظم، کابينه او نورې دولتي ادارې يې درلودې منځ ته راغله. د زراعت، مالدارۍ، صنايعو او کلتور په برخه کې اصلاحات رامنځ ته شول. عنعنوي معارف په عصري معارف بدل شو. پوځ جوړ شو او اقتصادي حالت وده وکړه. د امير محمديعقوب خان د سلطنت په وخت کې انګريزانو د دويم ځل لپاره پر افغانستان يرغل وکړ او د امير شيرعلي خان د وخت اداره او اصلاحات له منځه لاړل. ملوک الطوايفي رامنځ ته شوه. د بې نظمۍ له امله اقتصادي منابعو زيان وليد او خلک له ډېرو ستونزو سره مخامخ شول.

په ۱۸۸۰م. کې امير عبدالرحمن خان سلطنت ته ورسيد. هغه لومړی سل زره کسيز پوځ جوړ کړ او د يو قوي مرکزي دولت بنسټ يې کېښود او ټول افغانستان يې د مرکزي دولت تر ولکې لاندې راوست.

انگریزانو امیر او د افغانستان دولت ته ډیرې دسیسې جوړولې، ترڅو په پای کې یې پر امیر د ډیورند کرښه تحمیل او لاسلیک کړه، چې د هغې له امله د افغانستان له بدن څخه ځینې برخې جلا شوې.

د امیر حبیب الله خان د سلطنت په موده کې تر یوې کچې پورې معارف او د نوي کلتور خپرېدو ته پاملرنه وشوه. اقتصاد پر مختګ وکړ مواصلاتي لارې، بندونه او نهرونه جوړ شول. د ورلو راوړلو لپاره یوشمېر موټر له یوې انګلیسي کمپنۍ څخه خریداري شول او د کابل جلا ل آباد او لغمان ترمنځ ټیلیفون جوړ شو. د نساجۍ فابریکې د بخار د قوې په وسیله په کار پیل وکړ. د جبل السراج بند د کابل د ښار د روښانه کولو لپاره په کار پیل وکړ. یوه مطبعه جوړه شوه چې دوه ورځپاڼې او کتابونه په کې چاپېدل او روښانفکران په دربار او د حبیبیې په ښوونځي کې راڅرګند شول چې موخه یې د دیموکراسۍ او د مشروطیت رامنځ ته کول وو.

# د څپرکي موخې

۱- د استعمار پر وړاندې د ملي پاڅونونو او خپلواکۍ د لاسه ته راوړلو له مفاهيمو سره آشنا کېدل

۲- د نظامنامو او اصولنامو له ماهيت سره پېژندګلوي.

۳- د خپلواکۍ په لاس ته راوړلو کې د شاه امان الله خان دوندېې سره پېژندګلوي.

٤- پر افغانستان باندې د دويمې نړيوالې جګړې د ناوړه اغېزو سره پېژندګلوي.

۵- د سردار محمد داوود خان د صدارت په وخت کې د رغاونې له پلانو سره پېژندګلوي.

٦- د ديموکراسۍ د لسيزې او د هغې د لاسته راوړنې سره پېژندګلوي

۷- په جمهوريت باندې د سلطنت بدليدلو لاملونه.

۸- د استعمار د سياست د ماهيت په تحليل پوهيدل.

۹- د نقشې له مخې هغه ځايونه چې انګريزان په لومړۍ جګړه کې هلته مېشت ول د نښه کولو مهارت.

۱۰- د تاريخي نقشو او اطلسونو څخه دګټه پورته کولو مهارت.

۱۱ - د سياسي بدلونونو په لاملونو باندې پوهيدل او درک کول.

# د هیواد په خپلواکۍ کې د امان الله خان ونډه (فبروري ۱۹۱۹ - جنوري ۱۹۲۹ میلادي)


شاه امان الله غازي

د امان الله خان شخصیت، واک ته د رسېدو څرنګوالی، د خپلواکۍ په تر لاسه کولو کې د هغه ونډه او هغه تړونونه چې له انګریزانو سره لاسلیک شول چې د هغه له امله د افغانستان خپلواکي په رسمیت وپیژندل شوه په دې لوست کې به ورسره آشنا شئ.

د ۱۹۱۹ میلادي کال د فبرورۍ په ۲۱ مه امیر حبیب الله خان د لغمان د کله ګوش په ښکار ځای کې ووژل شو او د وژلو پر دویمه ورځ ورور یې نصر الله خان په جلا ل آباد او زوی یې امان الله خان په کابل کې د پاچاهۍ اعلان وکړ. په دې توګه په یو وخت هېواد کې دوه حکومتونه منځ ته راغلل. څرنګه چې له امان الله خان سره د خلکو او درباریانو مینه او ملاتړ زیات و، نو د نصرالله خان په پرتله یې د هغه موقف پیاوړی کړ، ځکه نو نصرالله خان د پاچاهۍ له ادعا لاس واخیست امان الله خان د چاپ شویو اعلامیو له لارې خپله پاچاهي او د هېواد د خپلواکۍ په اړه خپلې موخې او تګلارې د افغانستان خلکو ته داسې څرګندې کړې:

«ای د افغانستان معظم ملته! د پلار د شهادت پر وخت په کابل کې د سلطنت وکیل وم او اوس مې د خدای (ج) په توکل او د هغه پر رسی باندې د منګولو لګولو له کبله د امانت دروند پیټی په غاړه واخیست. کله چې زما لوی ملت د شاهي تاج زما پر سر کېښود، نو ژمنه مې وکړه، چې باید د افغانستان دولت د نړۍ د نورو خپلواکو هېوادونو په څېر په دننه او بهر کې یو خپلواک هېواد وي. د افغانستان ملت

د هېواد په داخل کې بشپړه خپلواکي ولري او له هر ډول ظلم او تېري څخه خوندي او خلك باید یوازې د قانون منونکي وي او بس. بیګار او اجباري کارونه په ټولو برخو کې منع او لغوه دي، زموږ حکومت به داسې اصلاحات پلي کړي چې ملت او هېواد مو وکړای شي چې د نړۍ د پرمختللو هېوادونو په منځ کې مناسب ځای او خپل مقام تر لاسه کړي. زه به د هېواد د چارو د سرته رسولو په برخه کې مشوره د شا ورهم في الامر د حکم په اساس خپله لار ښود وګرځوم. ((ای ګرانه ملته او تمیز لرونکي قومه! د خپل دین، دولت او ملت په ساتنه کې ویښ او د هېواد د ناموس په ساتنه کې هوښیار اوسئ. زه له خدای ﷻ څخه ستاسې، اهل اسلام او ټولو انسانانو لپاره خیر او نېکمرغي غواړم...))

مخکې له دې چې امان الله خان واک ته ورسېږي، لومړی یې د هېواد له ډېر شمېر با رسوخو او روښان فکرو سره اړیکې ټینګې کړې او دویمه دا چې امان الله خان پخپله د اصلاحاتو او نوښتونو مینه وا ل و. درېیم دا چې مخکې له دې چې واک ته ورسېږي، د پلار د واکمنۍ پر وخت یې د سیاسي او ټولنیزو اړیکو لپاره لازم امکانات درلودل.

په بهرني سیاست کې امیر امان الله له پردیو څخه د هېواد د خپلواکۍ او د ځمکنۍ بشپړتیا د ساتنې غوښتونکی و. هغه د خلکو لویې غونډې ته چې د کابل خلك او د پلازمېنې پوځیان په کې وو، پر آس سپور پرته له ساتونکو مرادخانۍ ته راغی د خلکو غونډې ته داخل شو. په داسې حال کې چې بې تیکې توره یې تر ملا ځړېدله، خپله مشهوره تاریخي وینا یې واوروله. په دې وینا کې له ډول ډول مسائلو څخه یادونه وشوه، د بېلګې په توګه، د افغانستان بهرنۍ خپلواکي او په داخل کې فردي آزادي، مساوات، ورورولي او برابري، د ملت آزادي او د عدالت او صداقت په څېر مهم مسائل یې د نوي دولت په کړنلاره کې مطرح کړل. د وینا پر مهال د خوشالۍ او شاباسي چغې پورته او په دې توګه نوی دولت منځ ته راغی، چې په لسو ورځو کې د هېواد د ټولو ولایتونو د خلکو ملاتړ یې تر لاسه کړ.

د امان الله خان د مرام اعلان بزګران، مالداران، سوداګران او روښان فکران د نوي حکومت پلوي کړل ، ځکه د هغه مرام د ټولو خلکو له غوښتنو سره سمون درلود.

د یوه کس پوځي تنخواه چې ۱۲ روپۍ وه وروسته له دې ۲۰ روپۍ اعلان شوه. دولت د پوځیانو د آرامۍ او اړتیاو دپوره کولو لپاره چې د خپلواکۍ ساتونکي وو، ډېره پاملرنه وکړه. همدا و چې د افغانستان شپېته زره کسیز پوځ په ټول هېواد کې له نوي دولت څخه ملاتړ وکړ. کله چې امان الله خان د خپلواکۍ د ګټلو لپاره جهاد اعلان کړ، د هېواد مختلفې طبقې متحدې او د ۱۹۱۹ میلادي کال د اپریل په دیارلسمه

يې د خپلواکۍ اعلان وکړ.

امان الله خان انګلیسانو ته د افغانستان د خپلواکۍ خبر ورکړ، دا چې د برتانیې دولت دې ته حاضر نه و، چې له خپل استعماري نفوذ څخه تېر شي او د افغانستان خپلواکي په رسمیت وپېژني، په ځواب کې یې یوازې د پلار د مړینې تسلیت ور ولېږه او د خپلواکۍ هیڅ یادونه یې ونه کړه.

امان الله خان د دې لپاره چې د افغانستان د خپلواکي د رسمیت پیژندنې موضوع پلي کړي، افغاني پوځیان یې د برتانوي هند د پولې مختلفو برخو ته ولېږل او ځای پر ځای یې کړل او د افغانستان د سیاسي خپلواکۍ لپاره د افغان او انګلیس درېیمه جګړه پیل کړه. د افغاني قواوو سوقیات د هېواد په درېو جبهو (خیبر، پکتیا او کندهار) کې پیل شول.



د دارالامان ماڼۍ

## الف: د راولپنډۍ د سولې مذاکره د اګست (۸ د ۱۹۱۹م. کال)

له افغانستان سره د جګړې وروسته انګلیسانو دا غوره وګڼله چې د افغانستان دولت سره خپلې اړیکې ښې کړي او مسئلې د خبرو اترو له لارې حل کړي، ځکه نو د حکومتونو ترمنځ تر یو شمېر لیکونو وروسته د سولې یو هیئت د علي احمد خان په مشرۍ راولپنډۍ ته روان شو او د برېتانیې د هیئت له رئیس سرګرانټ Sir Grant سره یې په کنفرانس کې ولیدل او وروسته له څو غونډو په پای کې د دواړو دولتونو له خوا د سولې پنځه ماده ییزه معاهده لاسلیک شوه. علي احمد خان په دغه لاسلیک کې تېروته او د سولې ترون د انګلیسانو په ګټه او د افغانستان په زیان لاسلیک شو.

## ب: د مونسوري مذاکره(۱۹۲۰ میلادي کال)

څرنګه چې د راولپنډۍ د سولې کنفرانس د افغانستان په زیان لاسلیک شوی و، د افغانستان حکومت د برتانیې له حکومت سره د دویم ځل لپاره د مساوي حقوقو پر بنسټ د یوې معاهدې غوښتنه وکړه، په پای کې د ۱۹۲۰م. کال د مارچ په ۹ مه انګلیسي دولت له امیر څخه غوښتنه وکړه چې یو افغاني هئیت منسوري ته راولېږي. افغاني هیئت د محمود طرزي په ریاست د افغانستان د بهرنیو چارو وزیر، او د برېتانیې د استازي سره خپلې غونډې پیل کړې، نوموړي کنفرانس څه کم درې میاشتې دوام وکړ،

پایله یې ور نه کړه او افغاني هیئت تر سترو او اوږدو مذاکراتو وروسته بې له دې چې قرارداد لاسلیک کړي وي، کابل ته راستون شو.

انګلیسانو ولیدل چې افغانستان له نورو هېوادونو سره دیپلوماتیکې اړیکې پیل کړې دي، ددې په لټه کې شو تر څو افغانستان ته هیئت ولېږي او خبرې بیا پیل کړي.

## ج: د کابل معاهده د نوامبر (۲۲ د ۱۹۲۱ میلادي کال)

برتانوي هیئت د سرهزي دابس په مشرۍ کابل ته راغی او خپلې خبرې یې د افغانستان د بهرنیو چارو له وزیر محمود طرزي سره پیل کړې. خبرې څه کم یو ولس میاشتې اوږدې شوې، څرنګه چې د دواړو خواو غوښتنې یو له بل سره په تقابل کې وې، نږدې و چې یوولس میاشتنۍ اوږدې خبرې قطع شي. په پای کې د کابل معاهده د نوامبر په ۲۲ مه په ۱۹۲۱م. کال کې لاسلیک شوه او د انګلیس دولت د افغانستان خپلواکي تصدیق او په رسمیت وپېژندله. دواړو دولتونو یو بل ته د سفیرانو په لېږلو کابل او لندن ته موافقه وکړه.

په افغانستان کې د یوه خپلواکه دولت جوړېدل په بهرني سیاست کې د انګلیسانو په استعماري موضوع باندې په منځنۍ او نږدې ختیځ کې مرګونی ګوزارو او د آسیا استعماري ضد کې ډېر ژور اثرات درلودل.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړنۍ ډله دې د امان الله خان د اعلامیو په اړه او دویمه ډله دې د افغانستان د خپلواکۍ د بیا تر لاسه کولو په برخه کې یو له بل سره خبرې وکړي.

### پوښتنې

۱- کوم علتونه وو چې نصرالله خان یې د سلطنت له ادعا څخه لاس په سر کړ او شاه امان الله خان ته یې د قدرت رسېدو لار هواره کړه؟

۲- د شاه امان الله خان د اعلامیو په برخه کې لنډ معلومات ورکړئ.

۳- د افغانستان خپلواکۍ د کومې معاهدې پر اساس ترلاسه شوه؟

### له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د منابعو په مرسته د امان الله خان دشخصیت په اړه معلومات تر لاسه او هغه دې په ټولګي کې نورو ټولګیوالو ته ووایي.

# د هېواد د خپلواکۍ درېګوني مورچلونه

په دی لوست کې به د افغانستان د خپلواکی د بیالاسته راوړنې، ددرې ګونو مورچلونو ارزښت چې د انګلیسانو د ماتې او متارکې لامل شو پېژندګلوي ترلاسه کړي.

مخکې تر دې چې د انګریزانو په وړاندې د خپلواکۍ د جګړې د درېو لویو مورچلونو یادونه وکړو، د یوه مطلب څرګندونه اړینه ده او هغه دا چې، د هېواد خپلواکي یوازې د خپلواکۍ د جګړې په همدې درېو مورچلونو پورې راالنده نه کړو، د انګریزانو په وړاندې د خپلواکۍ جګړې لپاره د هېواد هره سیمه د خپلواکۍ ساتلو سنګراو د دفاع مورچل جوړ شوی و. د هېواد هره برخه او هر ګوټ د انګریزانو په وړاندې د هغوی د ځپلو سنګر ګرځېدلی و. خو بر بنده ماته او پرېکنده ګوزار د هغو افغان شازلمو په توره وشوه چې د اماني دولت له خوا یې په درېو مورچلونو کې ځارنه او پالنه کوله.

اماني دولت د خپلې واکمنی له پیله په هند کې انګریزي واکمنانو ته وښوده چې د افغانستان نوی دولت د پخوانیو تړونونو لاندې د اړیکو دوام نه غواړي او په ځانګړې توګه د اعلیحضرت امان ا لله خان له خوا د مارچ د میاشتې په دریمه نیټه په هند کې انګلیسي نائیب الحکومه لارد چلسفورد ته یو لیک ولېږل شو او په لیک کې غوښتنه و شوه چې د دواړو هېوادونو تر منځ د ۱۹۰۵ میلادي کال پر تړون

باید له سره غور وشي او د افغانستان خپلواکي د انګلیسانو له خوا ومنل شي . اماني دولت بې له دې چې د انګلیسي لوري ځواب ته انتظار وباسي، ورسره سم یې د نړۍ د یوشمېر هېوادونو او له هغې ډلې هېوادونو څخه د نوي جوړ شوي شوروي دولت سره د ډیپلوماتیکو اړیکو لپاره او هم یې د شوروي له لارې دیو شمېر اروپايي هیوادونو سره د اړیکو د تأمین هڅې پیل کړې. د دې تر څنګ یې د انګلیسانو سره د خپلواکۍ جګړې لپاره تیارۍ او چمتووالی ونیوه . په دې ترڅ کې د هېواد څخه د دفاع شورا جوړه او پر دښمن یې د غوڅو بریدونو لپاره یې درې ستر مورچلونه (د هېواد څخه د دفاع ختیځ، سویلي او سویل لوېدیځ مورچل) جوړ او د همدې مورچلونو د لارښونې لپاره یې دولتي کسان وګمارل.

## ختیځ مورچل

د اماني دولت د واکمنۍ د پیل سره جوخت د هېواد د خپلواکۍ تر لاسه کولو لپاره هڅو جریان درلود، خو د اپریل په میاشت کې د افغاني ځواکونو منظمې او پرلپسې هڅې غښتلې او ګړندۍ شوې. د افغاني ځواکونو لومړنۍ خوځښت د هېواد د ختیځ مورچل په لور هلته تر سره شو. چې سپهسالار صالح محمد خان چې د خپلو منظمو ځواکونو سره جلال آباد ته ورسېد ورسره سم د سیمې ولسي ځواکونه او د خپلواکۍ جګړې لپاره سر سپارونکو زلمو د انګلیسانو په وړاندې جګړې ته خپل تیارۍ څرګنده کړ.

د هېواد په ختیځ مورچل کې جګړه د مۍ میاشتې په دریمه نیټه د افغاني ځواکونو په یوه ناڅاپي یرغل پیل شوه. دا برید دومره ځواکمن او ګړندۍ و چې د انګلیسي لښکرو په منځ کې یې د وېرې او ډار فضا واکمنه کړه. افغاني ځواکونو د یوې اونۍ جګړو په ترڅ کې انګلیسي پوځیان د ننګرهار د څنډونه تر پېښوره داسې وځپل چې د بیا راګرځېدلو توان یکې پاتې نه شو. په ډهلي او لندن کې د انګلیس نظامیانو او سیاسیونو د افغانانو دا ناڅاپي برید او پرلپسې برۍ په اسیا کې خپلو ګټو ته ستر تهدید او ماتې وګڼله، نو ځکه یې په متقابل برید لاس پورې کړ او په خپل ټول توان یې د هوايي او ځمکنیو ځواکونو څخه ګټه واخستله او پرله پسې درنې هوايي بمبارۍ یې تر سره کړې، له یوې خوا یې د خپلو ماتې خوړلو ځواکونو مورال لوړ کړ او له بلې خوا یې د افغاني ځواکونو د پرلپسې بریدونو مخه په درنو بمباریو سره ونیوله او د تورخم تر پولې شاتګ ته اړویستل چې له یوې خوایې د لوژستیکي اړینو توکو د رسېدو مخه ونیول شوه او له بلې خوایې د کابل او جلال اباد ښارونه تر داسې هوايي بمباریو لاندې راوستل چې بې شمېره ولسي

خلک سپین ږیري او ماشومان یې په شهادت ورسول . دا هوایي حملې دومره زیاتې پرلپسې او درنې وې چې د اماني دولت یوشمېر لوړ پوړو کسانو له کابل څخه یوه مصؤن ځای ته د مرکز د لېږلو غوښتنه وکړه، خو اعلیحضرت امان الله خان دا وړاندیز ونه مانه او د جګړې لاربښونه یې له همدې کابل ښار څخه د بري تر ورستیو شېبو په غاړه واخیستله.

## سویل ختیځ مورچل

د اماني دولت د پریکړې سره سم سپه سالار محمد نادرخان د خپلو منظمو ځواکونو سره د اپریل پر ۲٤ مه نېټه ګردیز ته ورسېد. په ګردېزکې داوطلب ځوانان د نادر خان له ځواکونو سره یوځای شول. محمد نادر خان په ګردېز کې د ځواکونو د تنظیم او تر تیب په نیت د دوو اونیو لپاره پاتې شو. د مې د میاشتې په ۱٤ مې نېټې په ټوله پکتیا کې د خپلواکۍ اخیستلو نغاره ووهل شوه او افغاني قوتونو د انګریز لښکرو ته داسې پرله پسې ماتې ورکړه چې انګریزانو یو په بل پسې خپل عسکر کوټونه له لاسه ورکول. افغاني ځواکونه د ټل او وانې تر سیمو پورې د انګریزانو ټولې تانې تر لاسه کړې ، خو هغه غوڅ او هر اړخیزه برید چې د مې د میاشتې په ۲٦ مه نېټه تر سره شو، نور نو غلیم ته توان پاتې نه شواو ناهیلي شو ، ځکه یې د جون د میاشتې په دریمه نېټه د اماني دولت سره د متارکې او اور بند غوښتنه وکړه .

## سویلي مورچل

د هېواد د خپلواکۍ سویل مورچل چارې د سردار عبدالقدوس خان اعتماد الدوله په مشرۍ په مخ تللې. د سویل حوزې د بېلا بېلو سیمو اوسېدونکي د تیارۍ په حال کې د مرکز امر ته سترګې په لار ولاړ وو. اعتمادالدوله له کابل څخه د کندهار په لور د وتلو پر مهال یو څو دګوتو په شمار کسان ورسره ملګري وو، خو د وردګو, میدان او غزني تر سیمو پورې د اعتمادالدوله د لښکرو شمیر تر زرګونو کسانو زیات شو. کله چې اعتمادالدوله کندهار ته ورسېد په زرګونو داوطلبو ځوانانو په ګډون سره یې شمېر لسګونو زرو کسانو ته ورسېد.

په کندهار کې د ځواکونو ترتیب او تیارۍ لا نه و بشپړ شوی چې د انګریزي پوځیانو له لوري په یوه ناڅاپي برید کې د سپین بولدک او ښېین یو شمېر افغاني ساتندویان تر حملې لاندې راغلل او

په یوه نابرابره جګړه کې افغاني ساتندویان په شهادت ورسیدل، د دې خبر په خپرېدو سره د کندهار اوسېدونکو پر انګریزانو د برید چارې دومره ګړندۍ شوې چې سردار عبدالقدوس خان اعتمادالدوله ته یې د ځواکونو د سمون او تنظیم وخت ورنه کړ او بې له ځنډه یې د مۍ د میاشتې په ۲۶ مه نېټه د انګریزانو پر لښکرو برید پیل کړ، خو انګریزي پوځیانو پخوا تر دې چې د افغانانو د تورې شرنګ ته ځانونه ټینګ کړي لا یې پخوا پښې د خپلو عسکرکوټونو څخه سپکې کړې وې ، افغاني ځواکونو د انګریزانو پاخه سنګرونه یو په بل پسې تر خپل واک لاندې راوستل او تر کویټې ښاره یې سیمه د غلیم له واک او ځواکه پاکه کړه . کله چې افغانان کویټې ښار ته ورسېدل نو انګریزانو اماني دولت ته د متارکې او اور بندخواست وکړ او د دولتونو تر منځ د جون د میاشتې پر دریمه نېټه د اوربند خبر خپور شو چې ورسره سم د انګریزانو له خوا د افغانستان د خپلواکۍ د منلو ډیپلوماتیک بهیر پېل شو.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوه ډلو ویشل شي، لومړنۍ ډله دې د دري ګونو مورچلونو په اړه او دویمه ډله دې د افغانستان په اړوند د انګریزانو د پالیسۍ په اړه له یو بل سره خبرې پرې وکړي.



## پوښتنې

۱- د پکتیا په محاذ کې د محمد نادر خان ونډه څرنګه ارزوئ؟

۲- صالح محمد خان په کوم مورچل کې ګمارل شوی و او څه لاسته راوړنې یې درلودې؟

۳- د ټل کلا څرنګه فتحه شوه؟



## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې منابعو او ماخذو په لرلو سره د دریو ګونو مورچلونو د پایلو په اړه معلومات تر لاسه او بیا دې په ټولګي کې ووایي.

# اصلاحات او ریفورم۱۹۲۱- ۱۹۲۸میلادي


محمود طرزی

په دې لوست کې به د هغو اصلاحاتو او سترو کارونو په اړه چې امیر امان الله خان ترسره کړي دي معلومات ترلاسه کړئ.

په ۱۹۱۹م. کال کې چې د ۱۲۹۸ لمريز سره سمون لري د يوې لويې تاريخي پېښې په توګه د افغانستان د سياسي خپلواکۍ لاس ته راوړنې د هېواد په وروستيو ټولنيزو او اقتصادي پروسو کې ژورې اغېزې درلودې. افغانستان يوې نوې مرحلې ته داخل شو، له دې امله چې شاه امان الله د خلکو په منځ کې محبوبيت درلود، د هغوی په ملاتړ يې ډېر مهم بدلونونه رامنځ ته کړل. دغه اصلاحات او بدلونونه په دوو مرحلو کې ترسره شول. لومړنۍ مرحله چې له ۱۹۱۹- ۱۹۲۴م. کلونو پورې يې دوام وکړ. د افغانستان خلک چې د پرمختګ غوښتونکي وو. له دولت سره ودريدل او ټولو نويو اصلاحاتو ته يې هرکلی وواېه. د اصلاحاتو دويمه مرحله چې له ۱۹۲۴ م. کـال څخه پيل شوه چې د اماني دولت تر پای پورې يې دوام وکړ خو د یوشمېر کورنيو او بهرنيو عواملو له امله يې عملي بڼه پيدا نه کړه. شاه امان الله خان غوښتل چې ډېر ژر د خپلو تګ لارو او اصلاحي پروګرامونو له لارې د ښکلو، قصرونو، مجللو او زړه راښکونکو ودانيو، پارکونو، تفريح ځايونو، لويو فابريکو په جوړولو لاس پورې کړي، او صحتمنده وګړي ولري چې له نوي فرهنګ او تمدن سره آشنايي ولري، په همدغه هيله يې

له دغو کارونو سره ډیره مینه درلوده، پرته له دې چې د ټولنې فرهنګي حالت په پام کې ونیسي، د دغو کارونو په ترسره کولو کې یې له بیړې کار واخیست چې په پای کې یې ناوړې پایلې له ځانه سره درلودې.
د لومړۍ دورې له مهمو اصلاحاتو څخه یو هم د افغانستان د اساسي قانون تصویب و چې د ۱۹۲۳م. کال د لویې جرګې په ترڅ کې چې په جلال آباد کې جوړه شوې وه او ۸۸۲ کسو په کې ګډون کړی وو چې وروسته دا قانون د پغمان په لویه جرګه کې د ۱۹۲٤م. کال د چنګاښ په میاشت کې تائید او توشیح شو.
اساسي قانون چې د امان الله خان په اصلاحاتو کې لومړنی ګام ګڼل کیږي، د ډېرو ځمکو لرونکو له ګټو سره په ټکر کې و. شاهي مشروطه نظام یې تثبیت کړ. ډیر مهم اصلاحات یې په اقتصادي برخه کې رامینځته کړل څرنګه چې له انګلیسانو سره د ۱۹۱۹م. کال د خپلواکی په جګړې کې د هېواد پانګه په بشپړه توګه تشه شوې وه، اړینه وه چې د روپیو زیرمې چې پرته له هغې په هېواد کې یو بدلون هم ناشونی و، رامنځ ته شي. له همدې امله شاه امان الله خان د مالي او اداري اصلاحاتو چارې پیل کړې.

## مالي او اقتصادي چارې

شاه امان الله خان د اصلاحاتو د تطبیق په لومړي پړاو کې له ستونزو سره مخامخ نشو. نوموړي پر خلکو د مالیاتو فشار رالږ کړ. له ځمکې څخه د جنس مالیه یې په نقدې مالیه بدله کړه. او ټولو خلکو پرته د خان او ملک له سپارښتنې نیغ په نیغه له مالي دفترونو سره اړیکې پیدا کړې. د څارویو د مالیې دورکړې لپاره د څارویو محصول په نامه قانون رامنځ ته شو.
د مالي ادارو د تنظیم لپاره په کابل کې د (دفتري اصولو) په نامه ښوونځی جوړ شو چې فارغان یې د مالیې د مامورینو په توګه په هېواد کې مقرر شول او د دولت زړې حسابي چارې یې په عصري سیستم بدلې کړې. د حاکمانو په نامه ښوونځی په مرکز کې جوړ او فارغان یې په سیمه ییزو حکومتونو کې پر دندو وګومارل شول. سوداګري هم پراخه شوه او د داخلي ګمرکي تعرفو ډیروالی لغوه شو او د دې اصلاحاتو د پایلو له امله پانګې وده وکړه. د سوداګریزو معاملاتو شرعي محاکم رامنځ ته شول او د سوداګرۍ، شرکتونه په کابل کې جوړ شول.
امانیه دولت د فابریکو او اوسپنو د پټلیو جوړولو په هڅه کې شو او له دوو جرمني او فرانسوي شرکتونو سره قرارداد وشو چې له مخې یې په لسو کلونو کې له سویل څخه د افغانستان شمال ته د اوسپنې پټلۍ جوړېده. مرکزي ولایتونو ته د تیلیګراف او د تیلیفون د لینونو د غځولو کار پیل شو. په پغمان، جلال آباد او کندهار کې د سټیشنونو د جوړولو کار پیل شو. د موټرو بیارغولو، صابون،عطرو، ټوکر جوړونې، پنبې، غوړ ایستلو، نجارۍ، فابریکې په کندهار، هرات او مزارشریف کې جوړې شوې. د کابل،

مزارشریف، شوروي، ایران او ترکیې ترمنځ هوایي پوستې په پام کې ونیول شوې. د غازي او سراج بند په غزني کې بشپړ شول. د بدخشان د لاجوردو او هرات د نفتو په برخه کې یوه فابریکه او د اوسپنې د ویلې کولو، گوگړو، سربو، ابرک، تباشیرو او نورو په برخه کې پروگرامونه په پام کې ونیول شول. د دغو اصلاحاتو په پایله کې د دولت عایدات د تیر په پرتله له دوه چنده پورته شول او په کال کې له ۸۰ میلیون روپیو څخه ۱۸۰ میلیون روپیو ته ورسېدل. د وزنونو لپاره میټریک سیستم رامنځ ته شو. افغاني پولي واحد له روپۍ څخه په افغانۍ ونومول شو.

## اداره

دولت له هرڅه نه ډېره د افغانستان ملي وحدت او ثبات ته پاملرنه وکړه. او دغه ملي وحدت ورورولۍ د افغانستان د خلکو پر مساوي حقوقو ولاړه وه. د اساسي قانون د اتمې مادې سره سم ټول هغه خلک چې په افغانستان کې ژوند کوي، پرته له دیني او مذهبي مسایلو د افغانستان تبعه گڼل کېږي په مذهبې او دیني چاروکې، د دولت سیاسي نظام مکلف و چې دوگړو د شخصي آزادیو څخه پالنه وکړي او هیڅوک هم پرته له شرعي مجوز قانون څخه توقیف او مجازات کېدای نه شي، د تبعیض او تفریق مسئله د(مذهب، توکم او قبیله) له نظره له مینځ یوړل شول او ټول ملت ته برابر حقوق ورکول شول. د دولت دستگاه هم پر دریو اجرائیه، مقننه او قضائیه قواوو باندې ودرېده. اماني دولت د هېواد د حریم د ژغورنې لپاره هوایي ځواک جوړ کړ چې (۱۱) الوتکې یې درلودې او ٦٥ کسه زده کوونکي د دغې ځانگې د زده کړې لپاره روسیې، فرانسې او ایټالیې ته واستول شول. یوشمېر نور د پوځي زده کړو لپاره روسیې او ترکیې ته ولېږل شول. د کابل حربیه فابریکه پیاوړې شوه. جگړییز مهمات لکه: دافع هوا، توپونه او زري پوش موټرې د پوځي نظام په واک کې ورغلل. په کابل کې د راډیو اداره جوړه شوه او ښار په برېښنا روښانه شوه. د روغتیا په برخه کې په کابل او ولایتونو کې ملکي او پوځي روغتونونه جوړ او په مرکز کې د ښځو روغتون او په پغمان کې سناتوریم جوړ شو. د اکسرې ماشینونه کابل ته وارد شول او د دارالمجانین او دارالایتام د جوړولو کار پیل شو.

## پوهنه او کلتوري چارې

د اساسي قانون له ٦٨ مې مادې سره سم د لیک لوست زده کړې وړیا او اجباري شوې. ډېر شمېر ښوونځي په مرکز او ولایتونو کې جوړ شول. په پایتخت کې د حبیبیې پرلېسې سربېره امانیه لېسه جوړه شوه. لومړنۍ د فرانسویانو او دویمه یې د جرمنیانو په مرسته منځ ته راغله.

همدارنگه په مرکز او ولایتونو کې ۳۲۲ ښوونځي, او یو دارالمعلمین په هرات کې جوړ شو چې تر

۱۹۲۷ م. کال پورې یې د زده کوونکو شمېر ۵۱ زرو کسو ته ورسېد. په ثانوي او مسلکي برخو کې درې زره زده کوونکو زده کړه کوله. په سلګونو محصلین شوروي اتحاد، جرمني، فرانسې، ایټالیې او ترکیې ته د زده کړو لپاره واستول شول. همدارنګه یوه ملي کتابتون جوړ شو چې نن ورځ په عامه کتابتون یادېږي. د دې کارونو ترڅنګ یوه سینما د کابل په ښار او یو تیاتر په پغمان کې جوړ شو او دیارلس مجلې او جریدې د دولت په لګښت په کابل او ولایتونو کې نشر شوې، لکه ارشاد النسوان، اتحاد مشرقي، روزنامه افغان، معارف مجله، امان افغان، بیداري، د حقیقت ورځپانه او نور... مطبوعات او داخلي ورځپاڼې آزادې شوې او د شخصي جریدو او ورځپاڼو د چاپ لپاره زمینه برابره شوه چې د بېلګې په توګه کولای شو چې انیس، نسیم سحر او د نورو نومونه یاد کړو.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو وویشل شي. لومړنۍ ډله دې د شاه امان الله خان د مالي او اقتصادي اصلاحاتو په اړه او دویمه ډله دې د نومورې د اداري اصلاحاتو په اړه په خپلو کې خبرې وکړي.

## پوښتنې

۱. د امان الله خان اصلاحاتو څو مرحلې درلودې؟ هره مرحله یې د نېټې په یادونې سره وواياست.

۲. د افغانستان لومړنی اساسي قانون په کوم کال او چېرته تصویب شو؟

۳. شاه امان الله خان د کومې موخې لپاره اصلاحات پیل کړل؟

٤. د اداري جوړښت له مخې اماني دولت پر کومو قواو ولاړ و؟

۵. امان الله خان د پوهنې په برخه کې کوم کارونه ترسره کړل؟ لنډ ډول یې وواياست.

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د شاه امان الله خان د کلتوري اصلاحاتو په اړه معلومات تر لاسه او بیا دې په ټولګي کې ووايي.

# دغازي شاه امان الله خان اروپايي سفر(۱۹۲۷م / ۱۳۰۶ لمريز)




د شاه امان الله خان د سفر ضرورت، د سفر پايلې، د سفر په وړاندې غبرګونونه او د شاه له غيابت څخه د يو شمېر فرصت طلبو کړيو ګټه اخيستنه، دا هغه مفاهيم دي چې په دې لوست کې به ورسره آشناشئ.

غازي امان الله خان په (۱۳۰۵ لمريز) کال د وزيرانو د شورا په عالي مجلس کې د افغانستان د پرمختګ لپاره د نويو آلاتو او وسايلو کمې تر بحث لاندې ونيوه او ويې ويل: چې بايد د ښوونې او روزنې، مطبوعاتو، رغونې، د نويو مخابراتو، صنعت او د افغانستان د کرنې د پرمختګ په برخه کې له اروپايي هېوادونو څخه ډېر لوی سامان آلات واخلي او تهيه کړای شي. او ددې کار لپاره بايد مسلکي او کارپوه خلک انتخاب او په مناسب وخت کې اروپا ته ولېږل شي. د وزيرانو مجلس دا تصويب کړ چې ددغو ټولو علمي او فني موخو د لاس ته راوړلو لپاره دې پخپله غازي پاچا ددغه هيئت مشري پر غاړه واخلي، ځکه چې هغه پخپله د پوهنې او روښانفکرۍ ډېر لوی غوښتونکی و او هم څرنګه چې له (۱۳۰۱ لمريز) کال څخه وروسته د ځينو هېوادونو له خوا ځينې رسمي بلنليکونه راغلي وو چې پاچا دې د هغوی له هېوادونو څخه ليدنه وکړي همدا و چې امان الله خان د ملکې ثريا او د دولت د عالي رتبه غړيو سره اروپا ته روان شو او د ۱۹۲۷ ميلادي کال د (۱۳۰٦لمريز) کال مطابق د لیندی د مياشتې په لومړيو کې په کابل کې تر الله پامانۍ وروسته يې د کندهار لوري ته حرکت وکړ او په کندهار کې يې د

خلکو تر تاوده هرکلي وروسته د چمن لوري ته مخه وکړه او وروسته د کويټې له لارې کراچۍ ته ورسېد او په نوموړو ښارونو کې يې تر تودو هر کليو ورسته د هوايي ډګر او د الوتکو د ترميم د فابريکې تر ليدلو بيا د رسمي پروګرام سره سم د بمبي بندر ته روان شو. که څه هم پخپله له ترکي او فرانسوي ژبو سره بلد و، سره له دې هم يو شمېر ژباړونکي ور سره وو او همدارنګه په بهر کې د ټاکلي پروګرام د لرلو له امله افغاني سفيرانو او استازيو ته کومه ستونزه پيدا نه شوه. بمبي ته په رسېدو افغانان او هندوانو د هغه د هر کلي لپاره د سرک دواړو لوريو ته کتارونه جوړ کړي وو او له تودو ولولو سره چې (ژوندی دې وي غازي پاچا) استقبال شو. خلکو داسې احساسات ښودل، چې انګليسان يې سخت وويرول او دا له دې امله چې امان الله خان په اسلامي نړۍ کې له څومره ګرانښت څخه برخمن دی او غازی پاچا هم په خپلو ټولو ويناوو کې د هند او نورو محرومو ملتونو د خپلواکۍ خبرې کولې. په هند کې د خپلې پاتې کېدنې پر وخت د هغه هېواد خلکو ته داسې وويل:»خپلواکي نه ورکول کېږي، بلکې د تورې په زور تر لاسه کېږي» د هند د مشرانو او ټولنو تر ليدلو وروسته، امان الله خان عدن او له هغه ځايه مصر ته سفر وکړ چې د مصر د پاچا لومړني فواد او خلکو له خوا يې هر کلی وشو، د هغه هېواد د تاريخي آبداتو تر ليدنې وروسته سکندريې ته ولاړ او د مديترانيې د بحيرې له لارې ايټاليې ته روان شو. په روم کې له امان الله خان څخه تود هرکلی وشو او د پاچا (ويکتور امانويل)، ملکې او وليعهد سره يې وکتل. د ايټاليې پاچا په خپلې ويناکې د امان الله خان نه ستړي کېدونکي کارونو سرته رسول وستايل او له افغانستان سره د ښو اړيکو غوښتونکی شو، شاه او هئيت له ايټاليا څخه فرانسې ته مخه وکړه. په فرانسې کې يې جمهور رئيس تود هر کلی وکړ او په هغه ځای کې د خوښې وړ موضوعګانو لکه: د الوتکو، ټوپکو، مهماتو، په فرانسه کې د افغاني زده کوونکو د تحصيل، د استقلال لېسې ته د فرانسوي لايقو ښوونکو د راتګ د لرغون پوهنې په برخه کې د فرانسې همکارۍ او په نورو علمي او تخنيکي اړتياوو خبرې اترې او توافق وشو او هم د فرانسې له دولت څخه غوښتنه وشوه تر څو په کابل کې يو موزيم په فرانسوي سليقه جوړ شي. په فرانسه کې تر ټولو لوی وياړ چې امان الله خان تر لاسه کړ دا و چې د پاريس ښاروال د هغه په اړه وويل «ستاسې له شان سره داسې ډالۍ نه لرو چې تاسې ته يې وړاندې کړو. خو د پاريس ښار ستاسې چوپړ ته وړاندې کوم» او هم د ناپيليون چپرکټ يې د امان الله خان د استراحت لپاره ورکړ. امان الله خان له هغه ځايه بروکسل، بلژيک او سويس ته سفر وکړ او وروسته آلمان ته روان شو او د آلمان جمهور رئيس(پاول فن هندنبورګ) او دولتي چارواکو يې هر کلی وکړ، همدارنګه په آلمان کې د افغانستان د خپلواکۍ لسمه

کالیزه ونمانځل شوه او یو ځرخي الوتکه د آلمان د دولت له خوا امان الله خان ته ډالۍ شوه. د آلمان تر سفر وروسته امان الله خان انگلستان ته ولاړ او هلته یې د انگلیستان د پاچا (پنځم جارج) او ملکې له خوا هر کلی وشو، هلته یې د هغه ځای هوایي ځواک ولید، همدارنگه یې د آکسفورډ له پوهنتون او ځینو نورو ځایونو څخه لیدنه وکړه. د آکسفورډ پوهنتون له خوا ورته د حقوقو افتخاري دوکتورا ورکړل شوه. دا لومړنی افغاني شخصیت و چې د حقوقو په افتخاري دوکتورا وویاړل شو. د انگلستان تر سفر وروسته امان الله خان شوروي روسیې ته سفر وکړ او انگلیستان د امان الله خان له دې سفر سره مخالف وو، ددې لپاره چې امان الله خان له روسیې سره دوستانه اړیکې ونلري. شاه امان الله خان ته په روسیه کې د جمهور رئیس (کالینن) او نورو لوړو دولتي چارواکو له خوا تو د هر کلی وشو او دا لومړنی افغاني اتل و چې په شوروي روسیه کې یې ښه هر کلي وشو. دغه سفر په پایله کې یو لړ سیاسي، کلتوري او اقتصادي معاهدې لاسلیک شول.

وروسته امان الله خان ترکیې ته روان شو ، په ترکیه کې د ترکیې د جمهور رئیس مصطفی کما ل (اتاترک) او د ترکیې د صدراعظم عصمت انیونو او نورو دولتي غړیو له خوا یې هر کلی وشو په دې سفر کر دواړه هېوادونه د دوستۍ د ټینگښت، سیاسي، سوداگریز او کلتوري اړیکو غوښتونکي شول.
امان الله خان د آسیایي او اروپایي یوو لسو هېوادونو تر لیدنې وروسته ایران ته مخه وکړه او هلته یې د رضا شاه پهلوي له خوا تود هر کلی وشو. شاه او د ایران ملت د امان الله خان هغو کارنامو ته چې د ۹ کالو واکمنۍ په موده کې یې تر سره کړي وې، په درنه سترگه کتل، هلته د دواړو هېوادونو ترمنځ معاهدې لاسلیک شوې. همدارنگه هغه سرحدي ستونزې چې د ترکیې او ایران ترمنځ وې، د هغه په زیار او هڅه حل شوې، پاچا د ایران تر سفر وروسته افغانستان ته راستون شو.
د افغانستان لپاره د امان الله خان د دوو اسلامي هېوادونو (ایران او ترکیې) او اروپایي هېوادونو څخه لیدنې ډېر اهمیت درلود. په پایله کې دافغانستان موقف ټینگ او نړیوا ل اعتماد یې لوړ شو. د اروپایي او آسیایي هېوادونو له مشرانو سره د هغه اړیکې ددې ښکارندوۍ وې، چې افغانستان د یو خپلواک هېواد په توگه کولای شي، چې د نړۍ له ټولو هېوادونو سره د برابرۍ او متقابل احترام پر بنسټ اړیکې ټینگې کړې.
له شوروي اتحاد څخه د امان الله خان لیدنې او له ترکیې او ایران سره تړونونو دا ښکاره کړه چې په افغانستان کې دا نگلیسانو بیا اغېز له خاورو سره خاورې شو، هغه په دې سفر کې په دې بریالی شو چې له افغانستان سره د ځینو اروپایي هېوادونو پراخه اقتصادي مرستې را جلب کړي.

ملکه ثریا د امیر امان الله خان مېرمن او د هېواد د نامتو ښځو څخه په دې سفر کې له  امان الله خان سره ګډون درلود. ملکه ثریا د محمود طرزي دریمه لور وه چې یوه پوهه، عالمه، فاضله او د علم پلوې مېرمن وه. دغې نامتو میرمنې په کال ل ۱۲۹۳لمریز کال د شهزاده امان الله خان سره واده وکړ. ملکه ثریا د امیر امان الله خان له مشوقینو څخه د نوي فرهنګ او تمدن په خپرېدو، د ښځو د حقوقو د تامینولو او د هېواد د ترقۍ او پرمختګ په برخه کې وه. یوه فرانسوۍ خبریاله او د هوهلو مجلې استازې د امیر امان الله خان د اقامت په وخت په  فرانسې کې د ملکې ثریا سره مرکه او لیدنه وکړه او ددې په اړوند یې داسې ولیکل:)) ماد نړۍ د ډېرو ملکونو او لومړۍ درجو ښځو سره مرکې کړې دي خو  په دې متانت، ذهانت د ملکې ثریا غوندې ښځې مې لږې لیدلې دي. د دې مرکې څخه ماته ثابته شوه چې د افغانستان خاوره چې داسې ملکه روزلی شي، ډیر ژر ترقي، وده او د نړۍ له نورو هېوادونو سره سیالي کولی شي)).

د شاه امان الله خان سفر شپږ میاشتې اوږد  شو، دې سفر له یوې خوا ښې پایلې درلودې، خو له بل لوري یې د پاچا د اوږد مهاله نه شتون له امله د هېواد امنیت او اداره د ګډوډولو لوري ته  نږدې کړه او د دښمن د پلانونو د تطبیق لپاره یې زمینه مساعده کړه، همدا علت و، چې دغه کار ناوړه او ډېرې زیانمنوونکې پایلې له ځان سره راوړې.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړنۍ ډله دې اروپا ته د امان الله خان د سفر پر علتونو او دویمه ډله دې د سفر په لاس ته راوړنو یو له بله سره خبرې وکړي.

## پوښتنې

۱- د شاه امان الله خان اروپایي سفر څو میاشتې او کومو هېوادونو ته و؟

۲- په هند کې د امان الله خان د هرکلي په برخه کې لنډ معلومات ورکړئ.

۳- د شاه امان اله خان په وړاندې د دسیسو او توطیو لامل څه و؟

## له ټولګي څخه باندې فعالیت

زده کوونکي دې د شاه امان اله خان د اروپایي سفر په اړوند معلومات تر  لاسه او بیا دې په ټولګي کې ووایي.

# د اصلاحاتو پر وړاندې غبرګون



ولې اصلاحات له غبرګونونو سره مخامخ شول، کورني او بهرني لاملونو پکې څومره ونډه در لوده؟ په دې لوست کې به د دې پوښتنوځوابونه ترلاسه کړئ.

د هېواد خپلواکۍ تر ګټنې وروسته چې د غازي امان الله خان په مشرۍ د خلکو د قربانۍ په پایله کې حاصله شوه، د انګلیسي استعمارچیانو پر وړاندې ستر بریالیتوب و. افغانان و توانېدل چې د افغانستان ځوان او خپلواک دولت جوړ کړي. زموږ هېواد چې د استعمار له جغ څخه خپلواکه شوی و، په (اقتصادي، ټولنیزو کلتوري او نورو) برخو کې اصلاحاتو او بدلونونو ته یې اړتیا درلوده. نو کله چې امان الله خان د هېواد چارې په لاس کې واخیستې په اصلاحاتو یې لاس پورې کړ، تر څو وکړای شي هېواد د پرمختللو هېوادونو په کتار کې ودروي. اصلاحات او ریفورمونه پیل شول. او ډېرو افغانانو یې ملاتړ وکړ، خو ځینو خلکو د انګرېزانو په مرسته د اصلاحاتو په وړاندې منفي غبرګونونه وښودل. ځکه انګلیسانو غوښتل چې د داخلي اړو دوړ په پیدا کولو سره د افغانستان

ځوان دولت کمزوری او له منځه یوسي.

انګرېزانو له دې سیاست څخه چې (تفرقه واچوه او حکومت وکړه) کار واخیست او په ځینو ځایونو کې یې جاسوسي دستګاوو او شبکو په کار پیل وکړ. د جزا له قانون سره د منګلو خلکو مخالفت څرګند کړ. د نوي قانون په وړاندې مذهبي کړیو غبرګونونه وښودل. له دې امله یو شمېر روحانیونو په پکتیا کې مخالفت څرګند کړ، په ۱۳۰۴ لمریز چې د ۱۹۲۵ م. کال سره سمون لري، امان الله خان هڅه وکړه چې د خبرو له لارې موضوع حل کړي هیئتونه او د جوماتونو ملا امامان یې پکتیا ته ولېږل، تر څو د هغه ځای روحانیون قانع کړي. خو هغوی ونه منله، هماغه و چې د ملا عبدالله په مشرۍ په پکتیا کې مخالفت پیل شو او تر لوګره راورسېد. دولت د هغوی په وړاندې مقاومت وکړ او مخالفین یې غلي کړل.

شاه امان الله خان د افغانستان د پېژندنې او د مرستو د راجلبولو لپاره آسیا او اروپا ته اوږد سفر وکړ چې د هغه د اوږدې مودې د نه شتون څخه بهرني دښمن ګټه واخیسته او د شومو پلانونو لپاره یې ډېره ښه زمینه برابره شوه. کله چې امان الله خان له اروپا څخه راستون شو، له اصلاحاتو او پرمختګ سره یې مینه ډېره شوه او د اصلاحاتو او ریفورمونو عملیه یې چټکه کړه امان الله خان له یوې خوا د نړۍ پرمختللې هېوادو نه لیدلي وو نو غوښتل یې چې افغانستان داسې پرمختګ او پراختیا وکړي او د نورو هېوادونو له احتیاجه خلاص شي او له بل لوري وروسته پاتې کړیو له بهرني لوی دښمن(انګلیس) سره یو ځای ددغو بدلونونو د تطبیق مخه نیوله.

د اماني خپلواکه دولت پر ضد لویه توطئه جوړه شوه. د مخالفینو خواره واره ګروپونو سمون پیدا کړ او نظامي عملیات یې پیل کړل او دښمن په دوو جبهو (ختیځ او شمال) کې په فعالیتونو مصروف شول. ددې پلان طرحې داسې وې چې اغتشاش لومړی له ختیځ څخه پیل، تر څو دولت په دې

مجبور شي چې پوځیان هلته ولېږي او پایتخت له پوځیانو تش شي او له دې وروسته دې د شمال جبهې (کوهدامن او کوهستان ، بلواگر کابل ته داخل شي او په چټکۍ سره دې دولت له منځه یوسي ، او همدارنگه د امان الله خان د دولت یو شمېر دولتي عالي رتبه مامورینو یې هم په پټه د دوی مرسته کوله.

په هغو ورځو کې چې په ختیځ کې د شینوارو بغاوت پیل شوی و په شمال کې د کابل لاره د کلکاني حبیب الله لخوا چې د سقاو د زوی په نامه مشهور و وترل شو.

کلکاني حبیب اله خپلې اړیکې د کابل والي علي احمد خان سره چې د هغه وخت د دولت لخوا کوهدامن ته د ستونزو د حل لپاره مامور شوی و ټینگې کړې. علي احمد خان ددې پر ځای چې د دولت په گټه کار وکړي، د خپلو شخصي گټو د ساتلو لپاره یې له کلکاني گروپ سره اړیکې ټینگې کړې، همدارنگه نورو فرصت طلبو کسانو له کلکاني حبیب الله سره مرسته وکړه.

کلکاني حبیب الله د ځینو لوړ رتبه دولتي مامورینو په مرسته د دولت پر ضد بلوا وکړ، د هغوی په همکارۍ د ۱۹۲۸ میلادي کال د ډسمبر په آخره پر کابل یرغل وکړ. څرنگه چې امان الله خان نه غوښتل چې وینې تویې شي، په ۱۹۲۹ م.کال د جنورۍ په لومړیو کې یې له پاچاهۍ څخه استعفا وکړه او کندهار ته ولاړ، له هغه ځایه یې ایټالیې ته مخه وکړه او د ژوند تر پایه هلته دېره شو. ورور یې سردار عنایت الله خان درې ورځې اقتدار په لاس کې ونیو او وروسته حبیب الله د سقاو زوی ارگ محاصره کړ او سردار عنایت الله خان کندهار ته شاتگ وکړ او په دې توگه حبیب الله کلکاني پرکابل واکمن شو او د واک په لاسته راوړو سره یې د پاچاهۍ اعلان وکړ.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو وویشل شي. لومړنۍ ډله دې د امان الله خان په وړاندې د غبرګونونو د لاملونو په اړه او دویمه ډله دې د افغانستان پر ضد د انګرېزانو د تحریکاتو او دسیسو په اړه یو له بله سره خبرې وکړي.

## پوښتنې

۱- کوم علتونه ددې سبب شول چې یو شمېر خلک د اماني دولت له اصلاحاتو څخه ناراضه شول؟

۲- د دولت پر ضد لومړنی بلوا چېرته پیدا شوه. پایله یې څه شوه، په لنډ ډول یې ووایاست؟

۳- د حبیب الله کلکاني د شخصیت په اړه څه پوهېږئ؟ معلومات وړاندې کړئ.

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې له هغو سرچینو چې ور سره شته، د اماني اصلاحاتو پر وړاندې د یو شمېر خلکو د ضدیت پر لاملونو یوه لکینه تیاره او په ټولګي کې دې نورو ټولګیوالو ته ووایي.

# د بحران پای او د قدرت ټینګښت (۱۹۲۹م / ۱۳۰۸ لمریز)


محمد نادر شاه

نادر شاه څرنګه واک ته ورسېد.
په کومو اصلاحاتو يې لاسی پورې کړ، بلواوې يې څرنګه غلی کړل. په دې لوست کې به ورسره آشنا شئ.

د کلکاني حبيب الله ۹ مياشتنی واکمنی کابل له هر پلوه خراب او زيانمن کړ. هېواد ۹ مياشتې په اړو دوړکې تېرې کړې، نو ځکه د افغانستان خلك له دې نظام څخه ناراضه وو او د يوه مثبت بدلون لپاره تيار وو. هماغه و چې محمد نادرخان د سويل ختيځې جبهې يو له فاتحينو او د اماني دورې سپاه سالار د خلکو په مرسته او همکارۍ د اکتوبر په ۱۵ ( ۱۹۲۹) ميلادي کال کې کابل ته راننوت او د سلام خانې ماڼۍ ته ولاړ. هلته يو شمېر د کابل معززين، مشران او قبايلو استازي موجود وو، محمد نادرخان په يوه وينا کې هغوی ته داسې وويل: « د خدای په فضل زه خپل آرمان ته ورسېدم. زما هيله د هېواد خلاصون و او دا دی نن ورځ زما هيله تر سره شوه، زه د قدرت هيله من نه يم. يوه لويه جرګه جوړوم، تر څو هغوی خپل مشر وټاکي» په دې وخت کې حاضرينو په يوه غږ وويل: لويې جرګې ته اړتيا نشته تاسې زموږ پاچا ياست او د مجلس غړو

وویل: په دې غونډه کې د پخوانۍ لویې جرګې ډېر غړي شته څرنګه چې هغوی له سپاه سالار څخه غواړي چې د پاچاهۍ تکلیف قبول کړي. په دې وخت کې حضرت مجددی (نورالمشایخ) د نادرخان پر سر پټکی د تاج او جوغې په ډول کېښود او محمد نادرخان د افغانستان پاچا شو.

محمد نادرخان خپله پاچاهي پر وران او خراب کابل پیل کړ، له دې کبله چې نوموړی له جدي ننګونو سره مخامخ و، مجبور و چې هر قدم په احتیاط سره واخلي .له یو لوري د امان الله خان د پلویانو مخالفت له بلې خوا د انګرېزانو لاسوهنې په هېواد کې ډېرې ستونزې رامنځته کړې همدارنګه د حبیب الله کلکانی پاتي شوني د دې لامل شو تر څو دولتي او حکومتي اداري ویجاړې اکثر نهادونه لوټ شوي وو. د کابل ښار او دولتي دفترونه چې په نهه میاشتو حکومت کې زیانمن شوي وو، د پادشاه او د نوي دولت اراکینو پاملرنه یې ځان ته وروا‌ړوله تر څو پادشاه له خپلې کورنۍ سره په ارګ کې استوګن شي.

د محمد نادرشاه د پاچاهۍ دوره د (امان الله خان او کلکاني حبیب الله) له دواړو پخوانیو دورو سره توپیر درلود. دا دوره نه د امان الله خان د دورې د لویدیځ ژوند او تهذیب په څېر او نه هم د کلکاني حبیب الله د دورې په شکل د مدنیت دښمنه وه چې مالیات او دولتي عایدات یې خلکو او بیت المال یې سپاهیانو ته ورکاوه.

محمد نادرشاه چې یو هوښیار، با تدبیره او آګاه شخصیت و د افغانستان د دولت په سر کې ودرېده. د هغه ورور محمد هاشم خان چې یو ډېر با انضباطه شخص و، د صدراعظم په توګه توظیف شو. د دولت نور غړي د تدبیر خاوندان وو چې په خپل چوکاټ کې یې ځانګړې صلاحیتونه درلودل. که څه هم هغه خپل حکومت د خپل ورور محمد هاشم خان په صدارت سره جوړ کړ، خو د اساسي کارونو کیلي یې له ځان سره ساتلې وه. د نادر شاه د پاچاهۍ پر وخت بنسټیز اصلاحات رامنځ ته شول. د کابل طبي ښوونځي چې وروسته د محمد ظاهر شاه په وخت کې د پوهنځي په

نامه ارتقأ وکړه، دکابل ادبي انجمن رامنځ ته شو، کلنۍ چې د پاچا له نوښتونو څخه وه، چاپ شوه او پخپله پاچا به د مطبعې له کارونو څخه څارنه کوله او په دې توگه په هغه وخت کې ډېر بنسټيز کارونه تر سره شول. د امنيت له پلوه د نادرخان په دوره کې ډېرې ستونزې وې، دا ځکه چې د کلکاني حبيب الله تر ماتې وروسته موضوع په دومره سادگۍ سره پای ته ونه رسېده، بلکې غبرگون يې درلود. لکه چې د ۱۹۳۰ ميلادي کال د جون په مياشت کې د شمال هغه شمېر قومونه چې د کلکاني حبيب الله د پاچاهۍ پر وخت يې گټې تامين شوې وې، په يوه ډېر لوی قوت سره يې بلوا وکړه چې په لومړي ځل د نادرخان له خوا ورته توصيه وشوه چې له بلوا څخه لاس واخلي ، خو هغوی ونه منله. وروسته محمد نادرخان مجبور شو چې اقدام وکړي او امنيت يې ټينگ کړ.

په ۱۹۳۲ ميلادي کال کې ملالېوني د حکومت پر ضد بغاوت وکړ او نادرخان يې په چټکۍ سره مخه ونيوله، له بل لوري د اماني دورې يو شمېر پلويانو د نوي حکومت لپاره ستونزې رامنځ ته کولې، خو نادر خان د دولتي حاکميت او ټينگيښت لپاره گډوډي غلې او مخالف کسان يې له صحنې څخه وويستل.

محمد نادرشاه او صدراعظم محمد هاشم خان له هر څه نه مخکې دې ته متوجه وو چې له ديني علماوو سره نېکې اړيکې ولري، ځکه هغوی پوهېدل چې له ديني عالمانو سره منفي چلند د ځان د له منځه وړلو حکم لري. نادرشاه يو باکلتوره شخص و، په همدې توگه يې وغوښتل تر څو هغه زيانونه چې په مخکينۍ دوره کې کلتور ته رسېدلي وو، بشپړ کړي او په دې برخه کې يې دقدر وړ خدمتونه وکړل. د هغه له کلتوري کارونو څخه يو هم دا دی چې پخپله به يې د زده کوونکو په سينه مډال لگاوه.

محمدنادر شاه د خپلې پاچاهۍ په ٤ کالو کې وکړای شول هغه بحران چې په ټول افغانستان کې

را منځ ته شوی و، پای ته ورسوي او دولتي واک ټینګ او واحد مرکزیت رامنځ ته کړي.

محمد نادرشاه د ۱۹۳۳م. کال د نوامبر د میاشتې په ۸ مه نېټه زده کوونکو ته د دلکشا په چمن کې مډالونه ورکول چې د عبدالخالق نومي محصل د تومانچې په ډزو سره ووژل شو. چې په همدې توګه د هغه څلور کلنه دوره پای ته ورسېده.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو وویشل شي، لومړۍ ډله دې د نادرشاه د شخصیت او د هغه د قدرت ته د رسېدو پر لاملونو او دویمه ډله دې د هغه د کارنامو په برخه کې پخپلو کې بحث وکړي.

## پوښتنې

۱- کله چې محمد نادرشاه واک ته ورسېد، له کومو ننګوونو سره مخ و؟

۲- د نادر شاه د سلطنت مهمې کړنې بیان کړئ؟

۳- محمد نادر شاه له څو کالو پاچاهی څخه وروسته او په څه ډول ووژل شو؟

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې په دولتي چارو کې ، د محمد نادر شاه د سیاست او پالیسی په اړه د ښوونکو او منابعو په مرسته، یو مطلب برابر او په ټولګي کې دې ووایي.

# د اصولنامې ترتیب او تدوین



سردار محمد هاشم خان

په دې لوست کې به د اصولنامو ضرورت د هغوی ترتیب او تدوین، اقتصادي کړکیچونو او د هغه له منځه وړلو سره به آشنا شئ.

کله چې محمد نادرشاه د هیواد واک په لاس کې واخیست، نو هیواد بحراني او داسې حالت درلود چې قانون په کې نافذ نه و، هماغه و چې د هیواد د قانونیت په فکر کې شو.

محمد نادرشاه په دې پوهېده تر هغه یو هیواد د قانون پر بنسټ ولاړ نه وي، هغه دولت نه یوازې دا چې پایښت نه لري، بلکې د هیواد شتون له خطر سره مخامخ کېږي. هغه دا درک کړې وه چې د اماني دولت له حساسیت سره مخامخ و او په همدې توګه منظم پلانونه مطرح شوي وو ترڅو د محمد نادر خان دولت له ریښې څخه راوباسي بهرنیو لاسونو او داخلي اجیرانو کار کاوه، ترڅو بحران رامنځ ته کړي. نادرخان په هوښیارۍ سره هماغه قوانین چې د امان الله خان په دوره کې د نظامنامې په نامه یادېدل، په لږ تفسیر سره د اصولنامې په نامه نافذ کړل. محمد نادرشاه د یوه با صلاحیته هئیت په واسطه اصولنامه (اساسي قانون) تدوین کړ. دا هماغه اساسي

نظامنامه وه چې د قوانينو د مور حيثيت يې درلود. په اساسي اصولنامه کې د شاه د حقوقو فصل تعديل او د امان الله خان د نامه پر ځای د نادرخان نوم راوړل شو.

د دولتي شورا پر ځای ملي شورا او داعيانو مجلس په اصولنامه کې داخل شو. همدارنګه اصولنامې د ملي شورا انتخابات ترتيب او دا دواړه د لويې جرګې غونډې ته د ۱۳۰۹لمريزکال د سنبلې(وږي) په ۲۸ مه وړاندې او تصويب شول. د همدې قانون پر بنسټ د ملي شورا انتخابات په ۱۳۱۰لمريز کال د سرطان (چنګاښ) په ۱٤ مه د سلام خانې په ماڼۍ کې د پاچا له خوا افتتاح شو او هېواد يو قانوني پړاو ته داخل شو. دا اساسي اصولنامه تر ۱۳٤۳ لمريز کاله پورې نافذه وه او له هغې سره په مطابقت کې ډېرې اصولنامې جوړې او تطبيق شوې. د قوانينو تطبيق د صدراعظمانو او وزيرانو په لاس کې وي. محمد هاشم خان چې ۱۸ کاله د افغانستان صدراعظم و، د شوراګانو په جوړښت کې يې ډېره ونډه درلوده. عبدالاحد مايار وردګ له ۱۹۳۲م. څخه تر ۱۹٤٦م. کاله پورې چې د محمد هاشم خان د ماموريت وروستی کال و، په پرلپسې توګه د ملي شورا رئيس و څکه چې دا د صدراعظم د باور وړ سړی و او د ښې پوهې په درلودو سره يې شورا ښه اداره کوله.

له هغه ځايه چې نادر شاه د ديني عالمانو سره د نيکو اړيکو غوښتونکی و، نو غوښتل يې چې د ديني عالمانو موقف ته عزت ورکړي. په دې توګه يې امر وکړ چې د ټولو اصولنامو په تدوين کې دې له علماو څخه مشوره واخيستل شي، تر څو قوانين له شريعت سره سم تدوين شي. په دې برخه کې له هغوی سره له مخکې مشوره کېدله.

د ديني چارو د لاښه پرمخ بېولو لپاره يې د(جمعيت العلما) مجلس جوړ کړ چې له شاهي خزانې څخه ديني علماو ته يو شمېر امتيازات ورکول کېدل. وروسته يې په کابل کې عربي دارالعلوم

جوړ کړ چې تجربه لرونکي ملایان یې د مدرسینو په توګه مقرر کړل او سردار عبدالرحمن خان یې د رئیس په توګه وټاکه.

څرنګه چې محمد نادرخان په یوه ډېر اساس وخت کې د افغانستان چارې په لاس کې واخیستې، ۱۹۲۹ م. او ۱۹۳۰م. کلونه د اقتصادي بحران کلونه وو او ټول لوی شرکتونه په اروپا، آسیا او ان امریکا کې له رکود سره مخامخ شول، یوه لویه بېوزلي په نړۍ کې خپره شوه. دا وضع چې د نړېوالې جګړې له پایلې څخه را پیدا شوې وه، په هر لور کې یې تباهي خپره کړه او افغانستان هم په غیر مستقیمه توګه له دې بحران څخه بې برخې پاتې نه شو. سربېره پر دې یو بل آفت (کورنۍ جګړه وه چې د افغانستان اقتصاد یې ځپلی وه او د کابل خزانه تالا شوې وه، محمد نادرشاه غوښتل چې په اقتصادي برخه کې یو قانوني سیستم پلی کړي، چې د هغې په اساس یو شمېر خبیر او پوه خلك چې کافي او مسلکي تجربې ولري، په دولت کې ونډه واخلي، د کابل، مزارشریف، هرات او کندهار لوېې لارې جوړې کړې ځینو شرکتونو ته د فعالیت اجازه ورکړل شوه.

پانګوالو پر دولت اعتماد وکړ، په همدې توګه راکد شوې پیسې یې راویستې او په کار ولوېدې، چې په دې کار کې د عبدالمجید زابلي ونده د یادولو وړ ده، په همدې توګه یې د محمد ظاهر شاه په دوره کې زیاتره د سوداګرۍ او اقتصاد د وزیر په توګه ونده سرته رسولې وه. همدارنګه د هېواد په صنعتي کېدو کې یې فعال او مهم رول درلود، نوموړي ډېرې فابریکې جوړې کړې او د افغانستان لپاره یې ډېر خدمتونه تر سره کړي دي. د محمدنادرخان او محمد هاشم خان په ډېرې پاملرنې سره د هېواد ډېرې وېجاړې ترمیم او د هېواد اقتصاد پراختیا وکړه.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو وویشل شي. لومړنۍ ډله دې د اصولنامې پر تدوین او دویمه ډله دې د محمد نادرخان پر اقتصادي پروګرامونو خبرې وکړي.



## پوښتنې

۱- له دیني عالمانو سره د محمد نادر شاه اړیکې څه ډول وې؟ شرح یې کړئ.

۲- محمد نادر شاه په اقتصادي برخه کې کوم کارونه وکړل؟ په لنډه توګه یې معرفي کړئ؟



## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د اصولنامې او د محمدنادرشاه د دورې د قوانینو په برخه کې له مشرانو او پوهانو څخه پوښتنې وکړي او یو مطلب دې ترتیب او په ټولګي کې دې ووایي.

# د محمد ظاهر شاه سلطنت



شهزاده محمد ظاهر څنګه واک ته ورسېد، د دويمې نړيوالې جګړې د بحران کلونه او پر افغانستان کې اغېزې او د دې بحران په له منځه وړلو کې د صدر اعظم محمد هاشم خان ونډه، دا هغه مطالب دي چې په دي لوست کې به ورسره آشنا شئ.

د محمد نادرشاه تر وژلو وروسته کورنۍ شورا جوړه او د اساسي اصولو د (۵) مادې سره سم محمد ظاهر شاه د محمد نادر شاه زوی چې ۱۹ کلن و، پاچاهۍ ته وټاکل شو. د اساسي اصولنامې سره سم ټول ملت يې تابعيت وکړ. نوم يې په خطبه کې ولوستل شو او په نامه يې سکه ووهل شوه او د شورا د مصلحت له مخې د المتوکل على الله لقب هم ورکړل شو چې ۴۰ کاله يې له نامه سره يو ځای و.

دا چې د محمد ظاهر عمر لږ او د کار تجربه يې نه درلوده، نو ټول کارونه يې د مشر تره محمد هاشم خان په غاړه وو. کله چې محمد ظاهر شاه پاچا شو، نو ډېر ژر يې خپل تره محمد هاشم خان پخوانی صدراعظم يو ځل بيا د کابينې مسؤول وټاکه او هغه هم خپله کابينه پاچا ته معرفي او په کار يې پيل وکړ.

د محمد ظاهر شاه د پاچاهۍ په لومړیو کلونو کې دویمه نړیواله جگړه پیښه شوه دویمه نړیواله جگړه په **۱۹۳۹** م. کې پیل او په **۱۹۴۵** م. کې پای ته ورسېده. د دې جگړې لمبې چې له اروپا څخه راپورته شوې وې، ډېر ژر اسیا او د نړۍ نورو برخو ته ورسېدې.

د دې جگړې گډون کوونکي ( المان، ایټالیا، جاپان او د ختیځې اروپا کوچني هېوادونه) د محور په نامه او ( انگلستان، فرانسه، شوروي اتحاد، د امریکا متحده ایالات او یو شمېر اروپایي هېوادونه) د متفقینو په نامه یادېدل، وو.

هغه هېوادونه چې په مستقیمه توگه په دویمه نړیواله جگړه کې ښکېل وو له مالي او ځاني پلوه ډېر زیانمن شول او همدا رنگه ناوړه اثرات یې ډېر وو. ټول هېوادونه یې متاثره کړل، ددې جگړې په وخت کې روسیه په شمال، ایران په لویدیځ او برتانوي هند د افغانستان په سویل کې زیانمن شول.

محمد ظاهر شاه او د وخت صدر اعظم محمد هاشم خان د یوې جرگې په جوړېدو د یوه فرمان له مخې افغانستان یې ناپېیلی اعلان کړ.

محمد هاشم خان د ښه تدبیر په درلودو سره نه یوازې دا چې افغانستان د جگړې له لمبو او زیانه وژغوره، بلکې له اقتصادي احتمالي ستونزو څخه یې هم وژغوره. د اقتصادي ستونزو سره سره یې ډېر اسعار ذخیره کړل چې وروسته ترې په پرمختیایي پروژو کې گټه واخیستل شوه.

کله چې جگړه ډېره سخته شوه، د محور ځواکونه د ختیځې اروپا له لارې د روسیې خاورې ته داخل شول. په افغانستان کې یو شمېر الماني او ایټالوي انجینرانو په ځینو پروژو کې کار کاوه، نو شوروي اتحاد او برتانوي هند یې په اړه اندېښنه کوله او افغانستان ته یې یادگېرنې ورکړې، تر څو المانیان او ایټالویان له خپلې خاورې وباسي. افغانستان د دغو وړاندیزونو ځینې برخې ومنلې او یاد شوي کارکوونکي یې په درنښت له هېواده بهر کړل.

خو د هغه وخت مدبر صدراعظم محمد هاشم خان وتوانېد چې د افغانستان اوضاع نورماله وساتي. د جگړې دروندوالي پر افغانستان هم اغېز درلود او یو شمېر امنیتي ستونزې یې رامنځ ته کړې، چې د هغه وخت له حالاتو، او د محمد هاشم خان له تدبیر سره سم دا ستونزې لرې شوې.

ځکه نو ویلای شو چې د افغانستان د ناپیلتوب پالیسي دا شوه چې امپریالیستي قواو نه شو کولای چې پرې تېرى وکړي چې دا کار د افغانستان د خپلواکۍ په ټینګښت، په منځني او نږدې ختیځ کې د امنیت په پیاوړتیا کې مرستندوى ثابت شو.

دویمې نړیوالې جگړې له اقتصادي پلوه هم پر افغانستان منفي اغېزه وکړه. پر شوروي اتحاد د المان یرغلونه او د بحرالکاهل پر سیمې د جاپان د یرغلونو په پایله کې د افغانستان سوداگریزې اړیکې د محور، اروپایي او اسیایي هېوادونو سره چې د جگړې په ساحه کې وې، قطع شوې. د افغانستان او شوروي اتحاد سوداگري ټیټې کچې ته ورسېده او یوازې له هندوستان (برتانوي هند) سره سوداگرۍ دوام درلود. د وارداتي توکو د کمي له امله د خوراکي توکو بیې لوړې شوې، په ځانگړې توگه په ( **۱۹۳۹-۱۹۴۴**م.) کلونو کې بیې له څلورو څخه تر پنځه چنده پورې لوړې شوې. دولتي چارواکو د خوراکي او صنعتي توکو د گرانۍ د مخنیوي او د بیو د تنظیم لپاره کلک تدبیرونه تر سره کړل.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې د دویمې نړیوالې جګړې او د افغانستان د ناپیيلتوب د پالیسۍ په اړه، یو له بله سره خبرې وکړي.

## پوښتنې

۱ـ د محمد ظاهر شاه د واک ته د رسېدو د څرنګوالي په اړه معلومات ورکړئ؟

۲ـ په دویمه نړیواله جګړه کې جنګي قوتونه په کوم ترتیب سره وېشل شوي وو؟

۳ـ د وخت صدراعظم محمد هاشم خان د دویمې نړیوالې جګړې په وخت کې د افغانستان د سوکالۍ لپاره کومې چارې سر ته ورسولې؟

۴ـ په دویمې نړیوالې جګړې کې د افغانستان ناپیيلتوب په سیاسي برخه کې کوم رول تر سره کړای شو؟

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې له خپلو مشرانو څخه د محمد ظاهر شاه د شخصیت په اړه یو مطلب جوړ او په ټولګي کې دې ووایي.

# لومړنی پنځه کلن پلان (۱۹۵۶ میلادي/ ۱۳۳۵ لمریز)


سردار محمد داوود خان

د لومړني پنځه کلن پلان ضرورت، د سردار محمد داود خان ونډه د دې پلان په تکمیل او پلي کولوکې، دا هغه مفاهیم دي چې په دې لوست کې به يې ولولئ.

د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه د سلطنت په لومړي وخت کې محمد هاشم خان د صدارت چارې پر غاړه لرلې او د خپلې غوښتنې له مخې يې له دغه مقام څخه استعغا وکړه. له هغې وروسته يې کشرى ورور سپهسالار شاه محمود خان صدارت ته غوره شو. هغه اوه کاله وروسته د ناروغۍ له امله استعفا وکړه. له دې وروسته د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه له خوا يې د تره زوی سردار محمد داوود خان د سردار محمد عزيز خان زوی د صدارت مقام ته وټاکل شو.

محمد داوود خان غوښتل چې افغانستان د سیاسي، اقتصادي او اجتماعي پلوه پر خپلو پښو ولاړ یو هېواد اوسي. او د منظمو اقتصادي پلانونو په جوړولو سره يې د ودې پړاو نه پیل کړل.

هغه په لومړي سر کې کابینه له پوهو کسانو څخه جوړه کړه. په بهرني سیاست کې يې د افغانستان مثبت ناپیيلتوب ځان ته غوره کړ چې بنسټ يې په ملي ګټو او د افغانستان د خلکو پرآزاد قضاوت ولاړ وو او دا کار د دې سبب شو چې د نړۍ هېوادونه دې ته حاضر شول چې پرته له قيد او شرطه څخه افغانستان سره مرسته وکړي. په دې وخت کې دا یو له ډېرو غوره کارونو څخه و، ځکه چې د امریکې د متحده ایالاتو او شوروي اتحاد تر منځ سیاسي موازنه يې ښه وساتله.

سردار محمد داوود خان یو مترقي او هیواد پال شخصیت و. هغه په دې ښه پوهېده چې یو هېواد په کومو وسایلو سره پر ستونزو بریالی کېدای شي. هغه د تولیدي او اقتصادي موسسو د پراختیا او پرمختیا

په برخه کې ډېره هڅه کوله. هغه و چې خپل کارونه یې په یوه چوکاټ کې منظم کړل. لومړنی پنځه کلن پلان یې په ۱۹۵۶م. کې پیل او په ښه توګه یې سرته ورساوه او دویم پلان یې په ۱۹۶۱م. کې تر لاس لاندې ونیو. په لومړی اقتصادي پلان کې پرمختیایي بودجه په بنسټیزو کارونو کې ولګول شوه چې د هغې په وسیله د سړکونو جوړول او د برېښنا د تولید کار ډېر ښه مخکې لاړ. په دې موده کې د کابل ـ کندهار او سپین بولدک تر منځ سړک، کابل ـ تورخم ـ قزل قلعه ـ د سالنګ تونل ـ کندهار ـ هرات او کشک نخود سړکونه اعمار شول.

همدارنګه د برېښنا په برخه کې د نغلو برېښنا د ۶۶ زره، ماهیپر د ۱۰ زره او د درونټې بند د ۱۱ زرو او د مزار شریف برېښنا ۱۰ زره کیلو واټه یې ظرفیت لوړ شو.

د نفتو او ګازو د منابعو استخراج د هېواد په شمال کې پیل شو. د ډېرو سکاره په پوره اندازه تولید شول. د صنایعو په برخه کې د مزار شریف د سرې د فابریکې تولیدات په کال کې ۱۰۰ زرو ټنو ته ورسېدل، د غوري سمنټو فابریکه او د موټرو د ترمیم ډېر شمېر دستګاه ګانې د هېواد په مختلفو برخو کې جوړې شوې. د دې تر څنګ د کابل د جنګلک فابریکه داسې کمپلېکس شوه چې نه یوازې وروسته یې لوی ماشینونه ترمیمول، بلکې د نصبولو چارې یې هم سر ته رسولې.

همدارنګه د ننګرهار پروژې ته زیاته پاملرنه وشوه تر څو د هغې د تولیداتو کچه جګه شي چې په ټول ژمي کې به یې د هېواد اکثرو سیمو ته مېوې او سابه ورکول.

د محمد داوود خان دویم اقتصادي پلان د وخت د کموالي او د ځینو نورو ستونزو له امله پلی نشو چې وروسته محمد داوود خان مستعفي او په دې توګه د هغه د صدارت دوره پای ته ورسیده.



## په ټولګی کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د محمد داوود خان پر شخصیت او بهرني سیاست او دویمه ډله دې د هغه د پنځه کلن پلان په اړه یو له بله سره خبرې وکړي.



## پوښتنې

۱ـ سردار محمد داوود خان څرنګه د صدارت دنده تر لاسه کړه؟

۲ـ د محمد داوود خان بهرنی سیاست په لنډه توګه معرفي کړئ.

۳ـ په لومړي پنځه کلن پلان کې کوم بنسټیز کارونه تر سره شول؟ هغه وواياست.

۴ـ د سردار محمد داوود خان دویم پنځه کلن پلان ولې پلی نشو؟



## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د محمد داوود خان د شخصیت او پنځه کلن پلان په برخه کې له منابعو، مشرانو او پوهانو څخه معلومات تر لاسه او بیا دې په ټولګي کې ووايي.

# د ډیموکراسۍ لسیزه (۱۳۴۳- ۱۳۵۲ لمریز)



ډاکټر محمد یوسف

آیا پوهېږئ د دیموکراسی د لسیزې اساسي قانون څه پایلې درلودلې؟ د دې پوښتنې ځواب په دې لوست کې به یې ترلاسه کړئ.

د ظاهر شاه د سلطنت وروستي لس کلونه د ډېموکراسۍ د لسیزې (اساسي قانون) یا د مشروطې شاهۍ په نامه یادوي. په افغانستان کې د ډېموکراسۍ دوره د سردار محمد داودخان تر استعفا یا د ۱۳۴۳ لمریز کال د اساسي قانون تر انفاذ وروسته پیل او تر لسو کلونو پورې یې دوام وکړ. تر دې دمخه د شاه محمود خان د صدارت په دوره کې هم هېواد ته د ډېموکراسۍ زمینې رامنځ ته شوې وې.

په نوي اساسي قانون کې پرېکړه وشوه چې د شاهي کورنۍ غړي په سیاسي ګوندونو کې برخه نشي اخستی او لاندې دندې او مسوولیتونه تر سره کولای نشي:

۱ـ د صدارت مقام. ۲ـ په شورا کې غړیتوب. ۳ـ په ستره محکمه کې غړیتوب چې د همدې پرېکړې له امله د ډېموکراسۍ په لسیزه کې پنځه صدراعظمان چې د شاهي کورنۍ غړي نه وو

( ډاکټر محمد یوسف، محمد هاشم میوندوال، نور احمد اعتمادي، ډاکټر عبدالظاهر، محمد موسی شفیق) دندې تر سره کړې. کله چې سردار محمد داوود خان د صدارت له مقامه استعفا ورکړه، محمد ظاهر شاه ډاکټر محمد یوسف د صدارت پر مقام مامور کړ، هغه هم ومنله او خپله کابینه یې د ۱۹۶۳ م. کا ل د مارچ په ۱۳مه جوړه کړه.

ډاکتر محمد یوسف په آلمان کې د فزیک په رشته کې زده کړې کړې وې. هغه په یوې منځنۍ کورنۍ پورې اړه درلوده. د ډاکټر محمد یوسف د حکومت غوره او اساسي دنده د اساسي قانون تدوین او د هغه د قانوني مراحلو سر ته رسول وو چې اعلیحضرت محمد ظاهر شاه لویه جرګه راوغوښته، اساسي قانون تدوین او هغه یې تایید او تصدیق کړ. ډاکټر محمد یوسف د دریم اساسي قانون په تدوین پیل وکړ. د ډېموکراسۍ دغه نوی نهضت په افغاني ټولنه کې د ډول ډول غبرګونونو سره مخامخ شو. ډېرو افغانانو، په ځانګړې توګه ځوانانو یې تود هرکلی وکړ، خو د هېواد په لویو ښارونو کې سختې مظاهرې رامنځ ته شوې.

د ډېموکراسۍ په لسیزه کې د مطبوعاتو قانون د تقنیني فرمان په وسیله نافذ شو او د دې قانون پر بنسټ په کابل کې دېرش جریدې نشر شوې چې د بېلګې په توګه مشهورې ورځپاڼې او جریدې یې په لاندې ډول وې:

افغان، مساوات، روزګار، افغان ملت، ملت، کاروان ورځپاڼه، خلق، پرچم، شعله جاوېد، ګهیځ، ترجمان، مردم او داسې نور...

په دې دوره کې د احزابو قانون د اساسي قانون په شورا کې پاس او د توشېح لپاره د شاه حضور ته واستول شو، خو شاه دا قانون وځنډاوه او د خپلې پاچاهۍ تر پایه یې توشېح نه کړ، خو له دې

سره هم روشنفکرانو په ښکاره ډول خپل سیاسي فعالیتونه پیل کړل او هر سیاسي جریان د ځان لپاره یو نشراتي ارګان درلود چې خپلې اعلامیې به یې په کې خپرولې. دغو ډلو د ډیموکراسۍ په لسیزه کې د خپلو فکري کړنلارو له امله په ښي او کیڼو ګروپونو وېشل شوي وو چې عبارت وو له:

۱- د خلق ډیموکراتیک ګوند چې وروسته په دوو ډلو، خلق او پرچم ووېشل شو؛

۲- اسلامی نهضت یا د مسلمانو ځوانانو جریان؛

۳- حزب دموکراتیک نوین (شعله جاوید)؛

۴- مترقي ډیموکرات ګوند؛

۵- افغان ټولنپال ولسواک ګوند (افغان ملت)؛

۶- د اتحاد ملي ګوند.

همدارنګه نورې لوېې او وړې ډلې هم وې چې په سیاسي فعالیتونو بوختې وې. په عمومي توګه د ډیموکراسۍ په لسیزه کې سیاسي ډلو د ډیموکراسۍ له نامه څخه په ګټې اخیستنې سره په سیاسي فعالیتونو لاس پورې کړ.

په فرهنګي او عمراني برخو کې هم کار وشو. د اساسي قانون په لسیزه کې چې پنځه صدراعظمانو دنده تر سره کړه، په ملکي او نظامي برخو کې تر یوې کچې کار وشو. د دغو فعالیتونو ځینې بنسټونه چې د داوود خان د صدارت په وخت کې اېښودل شوي وو، د ډیموکراسۍ په لسیزه کې پای ته ورسېدل.

د ډیموکراسۍ (اساسي قانون) په لسیزه کې د قواو تفکیک هم رامنځ ته شو او دولت پر درېو

قواوو( اجرایه، مقننه او قضایه) ووېشل شول او د شورا د دولسمې او دیارلسمې دورې لپاره په هېواد کې آزادې ټاکنې وشوې چې د افغانستان خلکو خپل استازي شورا ته واستول. په دې دوره کې پنځو حکومتونو له ولسي جرگې څخه د باور رایه واخیسته.

## په ټولگي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړنۍ ډله دې د ډېموکراسۍ د لسیزې د احزابو د قانون په اړه او دویمه ډله دې د ډېموکراسۍ په لسیزه کې د قواوو د تفکیک په برخه کې یو له بله سره خبرې وکړي.

## پوښتنې

۱ـ د ډېموکراسۍ لسیزه په افغانستان کې په کوم ډول منځ ته راغله؟

۲ـ کومو صدراعظمانو د ډېموکراسۍ په لسیزه کې دندې تر سره کړې؟

۳ـ د ډېموکراسۍ په لسیزه کې کومې ورځپاڼې او جریدې خپرې شوې؟ نومونه یې ووایاست.

۴ـ د ډېموکراسۍ په لسیزه کې دولت پر څو قواوو ووېشل شو؟

## له ټولگي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د هغو کارونو او برنامو په هکله چې د ډېموکراسۍ په لسیزه کې تر سره شوي دي یو مطلب جوړ او خپلو نورو ټولگیوالو ته دې ووایي.

# په جمهوريت باندې د سلطنتي رژيم د بدلېدو لاملونه



جمهور رئيس محمد داوود خان د کابينې له غړو سره

ولې سلطنت((مشروطه شاهي)) په جمهوريت بدله شوه، کومو شخصيتونو پکې لويه ونډه درلوده؟په دې لوست کې به دغو پوښتنو ته ځواب ووايو.

مشروطه شاهي رژيم په ۱۳۵۲ هـ. ش کال د چنګاښ په ۲۶ نېټه د يوې سپينې کودتا په ترڅ کې د سردار محمد داوود خان تر مشرۍ لاندې نسکور او پر ځای يې جمهوري نظام اعلان شو.

سردار محمد داود خان چې د محمدظاهرشاه د حکومت پرمهال د صدارت مقام يې د يولړ مسايلو پر اساس پرېښود، غوښتل يې چې خپلې شخصي او ملي موخې په خپلواکه توګه پر مخ يوسي هيله يې درلوده چې په سياست کې بيا برخه واخلي او د هېواد په سياسي او اداري برخليک کې اغېزمنه ونډه ولري.

د ډاکټر محمد يوسف د صدارت په دوره کې د ۱۳۴۳ لمريز کال د اساسي قانون انفاذ د مشروطه شاهي نظام اساسات رامنځ ته کړل، نو دغې موخې محمد ظاهر شاه ته دا انګېرنه ورکړه چې محمد داوود بايد د صدارت له مقامه لرې او سياسي ډګر ته يې بيا راتګ د تل لپاره ناشونی شي. د همدې اساسي قانون په يوې مادې کې ليکل شوي و چې د شاهي کورنۍ غړي په سياسي ګوندونو کې غړيتوب نه شي اخيستلی. پورتنۍ محدوديت چې نېغ په نېغه محمد داوود خان ته متوجه و، وروسته يې د هغه د ټولو سياسي هلو ځلو لارې بندې کړې.

له بل لوري وروستني حکومتونه چې يو په بل پسې ناکامېدل، د هېواد د اقتصادي او ټولنيز پرمختګ په برخه کې يې د خلکو باور له لاسه ورکاوه. له دې امله د شاهي نظام له اداري څخه د خلکو ناهيلي

او کرکه ورځ په ورځ ډېرېدله.
محمد داوود خان دا پرېکړه کړې وه په هر ډول چې امکان ولري د هېواد په سیاسي جوړښت کې بدلون راوړي، تر څو له یوې خوا د بحران خطر له منځه یوسي او له بل پلوه د خلکو غوښتنې د افغانستان د اقتصادي او ټولنیز پرمختګ په اړوند پوره کړي. له دې امله محمد داوود خان یو ځل بیا په سیاسي فعالیت لاس پورې او له شخصیتونو، سیاسي ګوندونو او د هېواد له مختلفو ډلو سره یې اړیکې ټینګې کړې.
محمد داوود خپل پلان داسې جوړ کړ چې د خپلو پلویانو د جلب و جذب دایره پراخه کړي او د سیاسي قدرت د لاس ته راوړنې اصلي کیلي چې پوځ و ملاتړېې تر لاسه کړي، نو په دې وخت کې چې سلطنتي نظام خپل محبوبیت په ټولنه کې تر یو حده پورې له لاسه ورکړي و خلک دې ته حاضر وو چې د ټولنې په سیاسي جوړښت کې یو ژور بدلون ومني او هغوی ورته هرکلی ووایي. محمد داوود او ملګرو یې وکړای شول، چې له همدې حالت څخه په ګټې اخستنې سره د خپل نفوذ حلقه په پوځ کې جوړ او د پوځي کودتا لپاره زمینه برابره کړي.
په دې وخت کې محمد ظاهر شاه د سترګې د علاج لپاره اروپا ته تللی و. د کودتا مقدمات له مخکې جوړ شوي و. نو په دې توګه د **۱۳۵۲ لمریز** کال د چنګاښ په **۲۶**مه د محمد داوود په مشرۍ او د پوځ د افسرانو په مرسته د شاهي نظام په رنګولو لومړنی جمهوریت بریالیتوب ته ورسېد او د هېواد د تاریخ نوی څپرکی پرانیستل شو.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړنۍ ډله دې له سلطنته څخه په جمهوریت د بدلېدلو پر لاملونو او دویمه ډله دې د شاهي او جمهوري نظام تر منځ د توپیر په هکله یو له بله سره خبرې وکړي.

## پوښتنې

۱ـ د **۱۳۵۲** کال د چنګاښ پر **۲۶**مه کومه پېښه رامنځ ته شوه؟
**۲**ـ هغه کوم لاملونه وو چې سردار محمد داوود یې دې ته اړ کړ چې کودتاه وکړي؟
**۳**ـ سردار محمد داوود خان د کودتا پلان څنګه طرح کړ؟

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د محمد داوود خان د کودتا د لاملونو په اړه چې په **۱۳۵۲** لمریز کال کې رامنځ ته شوه، وڅېړي او برابر شوی مطلب دې په ټولګي کې وړاندې کړئ.

# د ۱۳۵۲ لمریز کال د چنګاښ د ۲۶ مې کودتاه

په تېر لوست کې د کودتاه د لاملونو سره آشنا شوئ، په دې لوست کې به د کودتا د سرته رسېدونکو، د نوي دولت د سیاست او د کودتا پایلو سره پېژندګلوي تر لاسه کړئ.

سردار محمد داوود خان چې کله د صدارت له مقام څخه استعفاء وکړه، او لس کاله یې په ګوښه والي کې تیر کړل، د خپل صدارت په موده کې یې د هېواد د پرمختګ لپاره ډېرې هڅې کړې وې. د خپلې لس کلنې ګوښه والي په موده کې یې هم علاقه درلوده چې هېواد د پرمختللو هېوادونو په کتار کې ودروي. همدا وه چې د ۱۹۷۳م. کال د جولای په ۱۷مه چې د ۱۳۵۲ لمریز کال د چنګاښ له ۲۶ مې نېټې سره برابره وه، کودتا وکړه چې په پایله کې د افغانستان شاهي نظام ملغا او جمهوریت اعلان شو.

د چنګاښ د ۲٦ مې کودتاه د ۱۹٦۳م. کال د اساسي قانون لسیزې ته د پای ټکی کېښود. که څه هم هغو پنځو حکومتونو د ډیموکراسی دعوه کوله، خو په حقیقت کې پرې انارشیستي خصلت غالب و. د داوود خان کودتاه دې ګډ وډیو ته خاتمه ورکړه او پر ځای یې سردار محمد داوود خان د یوه ملي رهبر په توګه راڅرګند شو.

د شخصیت له پلوه هغه ډیر پاک، د اخلاقي سجایاوو خاوند او پر هېواد مین انسان و. د کودتاه تر پایلې وروسته یې خپله تاریخي بیانیه (خلکو ته خطاب) په نامه اعلان کړه چې د نوي دولت کړنلاره په کې وه.

داوود خان افغانستان د ګاونډیو هېوادونو سره د دوستۍ لېوال، د غیر منسلک هېوادونو غړی وباله او د ملګرو ملتونو ټولنې له منشور څخه یې خپل ملاتړ اعلان کړ، یوازې د پښتونستان مسئله یې له پاکستان سره د اختلاف د ټکي په توګه یاده کړه او د سولې له لارې یې د هغې د حل غوښتنه وکړه.

د نوي دولت د کړنلارې څخه د هېواد خلکو په ولایتونو او مرکز کې تود هر کلی وکړ، محمدظاهر شاه چې د ایټالیا د ناپل په ښار کې په استراحت بوخت و، په کابل کې د خپلې پاچاهی د له منځه تللو څخه خبر شو. سمدستي روم ته لاړ او خپله استعفا یې د افغانستان د سفارت له لارې د افغانستان د جمهوریت د مؤسس په نامه کابل ته را ولېږله. د استعفا نامې په رسېدلو سره چې د شاهي کورنۍ غړي بندیان وو له بنده آزاد او ایټالیې ته ولاړل.

یوه ورځ وروسته د نوي نظام د مرکزي کمېټې لومړۍ جلسه جوړه شوه. مرکزي کمېټې محمد داوود خان د

دولت د جمهور رئیس، صدراعظم، د بهرنیو چارو او د دفاع د وزیر په توګه وټاکه او نومورړي نوې کابینه معرفي کړه. د محمدداوود خان د فرمان په اساس د ۱۳۴۳ لمریز کال اساسي قانون لغوه شو او د نوي اساسي قانون د تصویب لپاره لویه جرګه چې ۳۴۹ کسه غړي يې درلودل د عزیزالله واصفي په مشرۍ راوغوښتل شوه او د ۱۹۷۷م. کال د مارچ په ۱۴مه نوی اساسي قانون تدوین او د محمد داوود خان له خوا توشيح او نافذ شو.

په ټولنيزه او اقتصادي برخه کې هم يولړ اقدامات وشول چې پر بنسټ يې د ځمکو اصلاحاتو ته پاملرنه وشوه، د ځمکې د اراضي قانون ((مترقي مالیات)) تصویب شو او له هغې سره سم د مالکانو اضافي ځمکې هغه بزګرانو ته چې لږ یا هيڅ ځمکه يې نه درلوده ورکړل شوه. د دولت له خوا د جزا او مدني قانون تصویب شو. ملي سرود منځ ته راغی، د بيرغ په نښان کې هم بدلونونه راغلل.

د افغانستان د جمهوري دولت له ډېرو مهمو کارونو څخه يو هم د اووه کلن اقتصادي پلان جوړول و. دا پلان په ۱۹۷۶م. کې پيل او په ۱۹۸۳م. کې بايد پای ته رسېدلی وای.

د جمهوريت په موده کې په ټول هېواد کې د سړکونو د څارنې او ترميم کار پيل شو. له هراته د کندهار تر سپين بولدك پورې د اوسپنې پټلۍ، د لوګر د عينکو د مسو د کان او د حاجي ګګ د سروې کار تر لاسه لاندې ونيول شو.

د محمد داوود خان پلانونه او پروګرامونه ډېر پراخ بنسټه ووچې ټول يې عملي نه شول، او د ۱۳۵۷ لمريز کال د غويي پر اوومه د يوې پوځي کودتاه په وسيله د محمد داوود خان جمهوري نظام رنګ شو.



## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو وويشل شي. لومړنۍ ډله دې د محمد داوود خان د شخصيت په اړه او دويمه ډله دې د هغه د اقتصادي پلانونو په برخه کې په خپلو کې خبرې وکړي.



## پوښتنې

۱. د محمد داوود خان د کودتاه پايلې څه وې؟

۲. کومو خلکو د محمد داوود خان په کودتاه کې زياته ونډه درلوده؟

۳. د ۱۳۴۳لمريز کال اساسي قانون په برخه کې کوم اقدامات وشول؟ په لنډه توګه يې ووايي.

٤. په اووه کلن اقتصادي پلان کې کوم کارونه تر سره شول؟



## له ټولګي څخه د باندې فعاليت

زده کوونکي دې د جمهوريت د دورې د څرنګوالي په اړه مطلب جوړ او په ټولګي کې دې ووايي.

# د دويم څپرکي بيا کتنه

د نړۍ د شلمې پېړۍ ټولنيز، سياسي او اقتصادي حالت د رنسانس د دورې د ۱۵ مې پېړۍ د دويمې نيمايي څخه تر ۱۸مې ميلادي پېړۍ پورې د مستقيمو اندونو، نظريو، د فرانسې د لوی انقلاب په ۱۷۸۹م. کال کې د بنسټيزو اغېزو او د ۱۹مې پېړۍ د يوشمېر فيلسوفانو د افکارو او نظريو محصول ګڼل کيږي. د دغو ټولو سيستمونو او سياسي مکتبونو لوړوالی په دې تاريخي مرحله کې داسې انګازې رامنځ ته کړې چې بشريت يې په تېرو دورو کې ډېره لږه بېلګه لېدلې وه. دا ځکه چې د اقتصادي ګټو او د مخالفو لوريو اختلاف د خپلو تضادونو تر ټولو لوړې کچې ته ورسېد او په نړۍ کې ډېرو لويو ورانونکو پېښو ته لاره هواره کړه.

په همدغې دورې کې د دوو نړيوالو جګړو په لړ کې نړۍ په دوو دښمنو قطبونو (ختيځ او لوېديځ) ووېشل شوه. د امريکا متحده ايالاتو په نړيواله برخه کې د بريتانيا ځای ونيو. چين د خپل مستقل سياسي خط په لرلو سره د نړۍ د دريم ځواک په توګه څرګند شو. اتومي، بيولوژيکي او کيمياوي وسلې د نړيوالې سيالۍ د پرمخ وړلو وسيله شوه، اقتصادي سيالۍ خپل وروستي پوړ ته ورسېدې او سړې جګړې چټک دوام پيدا کړ.

که څه هم د شلمې پېړۍ نړۍ ډېره متشنجه او بې ثباته وه، خو پرله پسې سياليو د انسان د ژوندانه په څرنګوالي کې ستر رول ولوباوه او د پرمختګ سبب شو. خو دغو پرمختګونو ټولنيزه جنبه نه درلوده او د ملتونو لويه برخه په ځانګړې توګه د افريقا او آسيا په لويو وچو کې له دې اسانتياوو بې برخې پاتې شول. په دغو ټولنو کې يو هم افغانستان و چې تر ټولو وروسته او د نوي تمدن له امکاناتو او وسايلو څخه بې برخې پاتې شو.

د افغانستان د وروسته پاتې والي لوی لامل دا و چې په شلمه پېړۍ کې دا هېواد د سيمې د هېوادو د ستراتيژيو د تقاطع ټکی شو او د نړيوالو سياليو په پايله کې يې ډېر زيان ولید.

# درېيم څپرکی

د افغانستان گاونډي هېوادونه

## د درېيم څپرکي موخې

١- د پاکستان د معاصر تاریخ او پېښو سره پېژندگلوي.

٢- د ایران د معاصر تاریخ او پېښو سره پېژندگلوي.

٣- د چین د معاصر تاریخ او پېښو سره پېژندگلوي.

٤- د تاجکستان د معاصر تاریخ او پېښو سره پېژندگلوي.

٥- د ازبکستان د معاصر تاریخ او پېښو سره پېژندگلوي.

٦- د ترکمنستان د معاصر تاریخ او پېښو سره پېژندگلوي.

٧- د نقشو او اطلسونو څخه د کار اخیستلو مهارت.

# د پاکستان اسلامي جمهوریت




د نهم ټولګي په تاریخ کې تاسې د پاکستان د موقعیت، نفوس او کلتوري ارزښتونو په اړه بلد شوئ. په دې لوست کې تاسې ته د هند د نیمې وچې د تاریخ، له هند څخه د پاکستان او له پاکستان څخه د بنګله دېش د بېلتون په هکله معلومات وړاندې کېږي. د پاکستان تاریخ د هغه د جوړښت څخه وړاندې د افغانستان اویا د هند د شبې قارې په تاریخ مطالعه کېدای شي.

اسلام د اوومې میلادي پېړۍ په لومړیو کې د هند نیمې وچې ته ورسېد. پوځیان او مسلمان مهاجرین چې له لوېدیځ څخه راغلي وو، د سند د سیند او پنجاب په سیمه کې چې د پاکستان د ځمکې لویه برخه جوړوي، مېشت شول. څو پېړۍ مخکې د هند په نیمه لویه وچه کې مسلمانان د دوه لویو ټولنو په توګه د هند په ختیځ او لوېدیځ څنډو کې رامنځ ته شول. د اسلام د مقدس دین سره د هند د بومي خلکو لېوالتیا د مسلمانانو په شمېر کې زیاتوالی راوست.

د بریتانیا د واکمنۍ پر وخت د هند د نیمې وچې په ډېرو برخو کې د مسلمانانو شمېر زیات وو، سره له دې هم هندوانو په هغو ځایونو کې چې د مسلمانانو شمېر په کې ډېر هم و، په دولتي چارو کې پر هغوی غلبه درلوده. ځکه نو مسلمانانو د دې لپاره چې ښه ژوند ولري، داسې هېواد چې دوی یې خپل وګڼي، په هغه کې خپل مشران وټاکلی شي او خپل اسلامي کلتور ته وده ورکړي، مینه درلوده.

د هند د نیمې لویې وچې او پاکستان له مهمو تاریخي پېښو څخه یوه هم د مسلمانانو راتګ و، له آشوکا وروسته سیاسي یووالی تر ډېره وخته پاتې نه شو. او په منځنیو پېړیو کې د کوچنیو پاچاهانو په لاس سره وېشلی و.

کله چې د بودا دین مخ پر زوال شو، د هند سیال پاچاهان یو له بل سره په جګړې اخته شول. او دې کار مسلمانانو ته چې د اسلام د بیرغ وړونکي وو، مناسب فرصت په لاس ورکړ.



محمد علي جناح

د هند نیمه لویه وچه د مغلو پر وخت د مسلمانانو تر واکمنۍ لاندې متحده شوه، خو ډېرو هندو شاهانو د مسلمانانو د واکمنۍ پر وړاندې مخالفت وکړ او د هغوی پر وړاندې یې مبارزه پیل کړه. د غزنویانو، غوریانو اسلامي سلسلو د هند پر نیمې لویې وچې واکمنۍ وکړه او د سختو مخالفتونو سره سره دغه نوې اسلامي ټولنې د هندوانو د پخوانۍ ټولنې ترڅنګ کرار کرار ساه اخیسته. د نوموړې ټولنې پادشاهانو به خپل پوځیان هڅول چې له هندو ښځو سره ودونه وکړي. د هندوانو د ټیټې پوړۍ ډېر کسان د اسلام د جاذبې او نیاو له امله مسلمانان شول.

په ۱۸۸۵م. کال کې هندوانو د دې لپاره چې د یوه بومي پارلمان د جوړولو بنسټ کېږدي، د هند ملي کنګره یې جوړه کړه. یو شمېر مسلمانان له کنګرې سره یو ځای شول، خو لږ وروسته څرګنده شوه، چې مسلمانان په کې لږ دي او ښایي ګټې یې په پام کې ونه نیول شي. په ۱۹۰۶ میلادي کال کې مسلمانان له کنګرې څخه جلا شول او خلکو ته یې ددې بلنه ورکړه چې په جلا ټولټاکنو کې مسلمانان خپل استازي وټاکي. په همدې ترځ کې یې د هند د ټولو مسلمانانو انجمن (مسلم لیګ) د هندوانو د کنګرې د رقیب په توګه تاسیس کړ. د ۱۹۴۵م. کال تر ټولټاکنو وروسته د مسلمانانو د یوه ملي دولت غوښتنه لاپیاوړې شوه، که چېرته تجزیه منځ ته راغلې نه وای، جګړه پیلېده، خو په پایله کې دا دواړه پېښې شول.

په ۱۹۳۸م. کال کې جناح د مسلم لیګ د پیاوړتیا لپاره د (دوو ملتونو) نظریه وړاندې کړه او د یوه بېل اسلامي هېواد د جوړولو غوښتنه یې وکړه چې په ۱۹۴۰م. کا ل کې مسلم لیګ د یوه پرېکړه لیک په ترځ کې د پاکستان د جوړولو غوښتونکی شو.

په ۱۹۴٦م. کې کنګرې او هم مسلم لیګ د بریتانیې د فدرالي حکومت د جوړولو طرح رد کړه او کنګره هم د ۱۹۴۷ م. کال پورې د تجزیې منلو ته تیاره شوې وه او یوازې د سرحدونو ټاکل پاتې وو. د ۱۹۴۷م.کال د اګست په ۱٤ مه پاکستان جوړ شو. تر ټولو لوی د اسلامي او ملي وحدت ازموینه هغه وخت را ورسېده چې کله بریتانیا دا ومنله، چې د هند نیمه لویه وچه دې د هند او پاکستان په هېوادونو تجزیه کړي، یوازې هغو سیمو ته چې ډېر مسلمانان په کې اوسېدل دا اجازه ورکړل شوه چې له پاکستان

سره دې يو ځای شي، خو بيا هم د کشمير د ډېره ميشتې مسلمانې سيمې پر سر خبرې او لانجې روانې وې.
د هند د نيمې لوې وچې تر تجزيې وروسته هندوان هند ته وتښتېدل او مسلمانانو هندي سيمې پرېښودې ، په لکونو انسانان په فرقه ييزو نښتو کې ووژل شول. لږ وخت وروسته دواړه ملتونه د کشمير پر سر په جگړه اخته شول، هند کشمير په دې بانه چې حاکم يې هندو دی، نيولی و، خو د مسلمانانو په دې دليل، چې ډېری اوسېدونکې يې مسلمانان دي، بايد کشمير د پاکستان يوه برخه وي. د پاکستان اصلي ستونزه د ملي هويت جوړونه د سياسي پولو ټاکل د واقعيت پربنسټ او باثباته او د منلو وړ رژيم د خلکو لپاره د توکمي، ژبني، عقيدتي او مذهبي توپير په لرو سره و.


خان عبدالغفار افغانستان ته په سفر کې

د يوه مستقل هېواد په توگه د پاکستان په منځ ته راتگ کې ځينو رهبرانو لکه فيلسوف او شاعر اقبال لاهوري، حقوقپوه محمد علي جناح ستر رولونه لوبولي دي. خان عبدالغفار خان د پشتونخوا د سترو او ملي څېرو څخه دي چې د انگليس د استعمار او استبداد په وړاندې پاڅون وکړ او د خپل ژوند ډېرې شيبې يې په دې لار کې تېرې کړې دي.
کله چې مهتماگاندي په ۱۹۳۸م. کال کې د پښتونخوا څخه ليدنه کوله، نو له نږدې څخه يې پاچاخان، د هغه مبارزې، او د خلکو اخلاص وليد نو هغه ته يې داسي وويل: »زما دعا داده چې پښتانه نه يوازې دا چې هندوستان خپلواک کړي، بلکې د همدې خپلواکۍ په برکت ټولې نړۍ ته د نه تاوتريخوالي اصول ورو پېژني«.
د پاکستان تر خپلواکۍ وروسته د اسلام د رول پر سر يو شمېر قانوني مصالحې وشي. د ۱۹۵۶م. کال اساسي قانون پاکستان يو اسلامي هېواد اعلان کړ او هم يې پارلماني قوانين د اسلامي تحقيقاتو د انستيتوت (Islamic Research Institute) د بياکتنې تابع کړل. په ۱۹۵۸م. کا ل کې دا قانون منسوخ شو او د پاکستان جمهوري د اعلان سره هڅه وشوه، د اسلامي رهبري ځواکمنتيا محاره کړې د هڅو په پايله کې په ۱۹۶۳م. کا ل کې بيا د ۱۹۵۶ م. کا ل اسلامي شرايط څه نا څه اعاده شول.

## د بنگله دېش بېلوالی

پاکستان ددې فکر پر بنسټ جوړ شو، چې د هند مسلمانان داسې يو ملت جوړ کړي چې د هېواد په لرلو سره ځانگړې سيمې او قلمرو ولري. پاکستان د سند، بلوچيستان، پنجاب او د پښتونخوا له ايالاتونو څخه ملت نه جوړاوه او د دوی ترمنځ ژور قومي او ژبني توپيرونه موجود وو. د پاکستان بنسټ ايښودونکو د دې نوي هېواد لپاره د لويديځ او ختيځ پاکستان د وحدت لپاره د اسلام دين اصلي عامل گاڼه. ژبنيو توپيرونو، ټولنيزو

ځانګړتیاوو، فرهنګي میراث او اقتصادي شرایطو مسئلې رامنځ ته کړې. ددغه هېواد دوو لویو ډلو تر اتلس کلونو پورې هڅه وکړه چې یو ځای ژوند سره وکړي او ګډ اتحاد رامنځ ته کړي. خو همدې موخې ته ونه رسېدل.

د لویدیځ او ختیځ پاکستان فرقه ییزه اختلافات او سیالی د دولت د کمزورولو اصلي سرچینه وه چې د ژبنیو اختلاف ، په ځانګړې توګه په لوېدیځ کې او په ختیځ کې لږه صنعتي پرمختیا هغه څه وو چې د اختلافاتو لړۍ یې راخپرې کړې وې. په ختیځ پاکستان کې یو بل سیاسي سیال را پیدا شو. د ۱۹۶۸م. کال په دوبي کې مجیب الرحمن د عوامي لیګ (خلک ګوند) مشر د ۳۵ بنګالیانو په ګډون له پاکستان څخه د بېلوالي مسؤول وګڼل شو. دغه اختلاف دې ته ورسېد چې په ۱۹۷۱م. کال کې د ختیځ او لوېدیځ پاکستان ترمنځ کورنۍ جګړه پیل شوه.

تر یوه خونړۍ جګړې وروسته، ختیځې برخې له مرکزي دولت سره خپلې اړیکې پرې کړې او د بنګله دېش په نامه یو بل هېواد رامنځ ته شو.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر درېو بېلابېلو ډلوووېشل شي، لومړنۍ ډله دې د هند په نیمه وچه کې د رهبرانو او ملي شخصیتونو د نقش او د پاکستان د خپلواکۍ په هکله او دویمه ډله دې د پاکستان پر تېر تاریخ او درېیمه ډله دې له پاکستان څخه د بنګله دېش د جلاوالي په هکله یو له بله څخه پوښتنې وکړي.



## پوښتنې

۱- مسلمانان کوم وخت د هند په نیمه وچه کې استوګن شول؟
۲- د مسلم لیګ ګوند په کوم کال کې جوړ شو؟
۳- پاکستان په کوم کال کې او څرنګه منځ ته راغی؟
٤- بنګله دېش ولې له پاکستان څخه بېل شو؟
۵- بنګه دېش په کوم کال کې د خپلواکۍ اعلان وکړ؟



## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د مشرانو, فرهنګي شخصیتونو او منابعو په مرسته د نه تاوتریخوالي د نهضت په اړه معلومات تر لاسه او بیا دې په ټولګي کې ووایي.

# د ایران اسلامي جمهوریت




په تېرو درسونو کې تاسې د ایران د موقعیت، ژبې او نفوس په اړه معلومات ترلاسه کړي وو، په دې لوست کې به د پهلوي دورې د قدرت، مهمو پېښو او د اسلامي انقلاب د لاملونو په هکله معلومات وړاندې شي.

اقتصادي، سیاسي، فرهنگي او ټولنیز حالات د قاجاري دورې په پایله کې مخ په خرابېدو وو چې د یو لړ بدلونونو لپاره په ایران کې یې لاره پرانیستله. په ایران کې د وروستنیو کلونو پېښې له دوو خواوو، کورني او بهرني حالاتو څخه اغېزمن و په بهرني برخه کې باید وویل شي چې استعماري هېوادونو لکه د روس او انگلیس اغېزه او په قاجاریه دوره کې د ایران د اقتصادي توان په کمزورۍ کې مهم رول درلود. له اروپایي هېوادونو سره د ایران اقتصادي اړیکې له صفوي دورې پیل شوې وې او نسبي انډول یې درلود، خو د قاجاریانو د دورې په وروستیو وختونو کې دغه انډول د اروپایي هېوادونو په گټه او د ایران په زیان تمام شو. د ایران کورني محصولاتو له بهرنیو تولیداتو سره سیالي نه شوه کولای، نو ځکه کورني تولیدات مخ په ښکته روان شول او ځای یې بهرنیو تولیداتو ونیو. د ایران په مختلفو ښارونو کې د صنایعو او کسبونو خاوندانو په کرار کرار خپلې دندې له لاسه ورکړې، اوزگار شول او ښکېلتیا خپل ځای بېکارۍ او بېوزلۍ ته پرېښود.

عدالت غوښتونکو استبدادي ضد جنبشونو په ایران کې او ورسره د اسلامی تعلیماتو یوې برخې د خپلواکۍ تر لاسه کولو او د عدالت د راستولو لپاره اغېزمن نقش ولوباوه چې د مطلقې واکمنۍ، استبداد، ظلم او ناروا او د ځان غوښتونکو واکمنانو پر ضد خلک یې مبارزې ته رابلل چې کولای شو دغه اغېزې

په قاجاریه دوره کې د مشروطیت په نهضت کې ووینو. نړیوالو پېښو او واقعاتو هم پر سیاسي او ټولنیزو بدلونونو اغېزې وکړې، د لومړۍ نړیوا لې جګړې څخه یو کـال مخکې احمد شاه قاجار چې ځوان شوی و، ناصر الملک یې د سلطنت له مرستیالۍ لرې کړ او د ملي شورا د مجلس جوړونې لپاره یې د ټاکونو امر صادر کړ، خو یو کـال وروسته د لومړۍ نړیوالې جګړې په پیل سره د پردیو د تېرېو د ډېرېدو له امله مجلس وځنډېد. ایران له ناپییلتوب سره سره، د پردیو له تېریو او د جګړې د ناوړه پایلو سره مخامخ شو.

## پهلوي دوره

تر لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته په ایران کې سیاسي، اقتصادي او اداري ګډوډۍ، په روسیه کې د سوسیالیستي نظام راتګ او ګاونډیو هېوادونو ته یې د خپراوي شتون او په ایران کې د حاکمه وضعې څخه د بېلابېلو پاځونو رامنځ ته کېدل او د ملت سرتاسري ناخوښي، د هېواد په شاو خوا کې، د سوداګریز لارو بندیزونه او له احمد شاه قاجار څخه د ملي او هېواد پالو محافلو ناهیلي او نا خوښي هغه څه وو چې د کب د میاشتې د درېمې نېټې د کودتاه لپاره یې لاره برابره کړه، د کودتا مشر رضا خان وو.


رضاشاه

نوموړي د تهران له نیولو وروسته هغه د سید ضیاالدین طباطبائي په مشرۍ مستقله کابینه جوړه کړه او لږ وروسته رضاخان د دفاع وزیر شو. ضیاالدین له ایران څخه تبعید شو او وروسته د قوام السلطنه په کابینه کې د دفاع د وزارت چارې او د ایران د پوځي قواوو مشري هم د رضاخان په لاس کې پاتې شوه. په داسې وضعیت کې په سیاسي غونډو، ناستو او مطبوعاتو کې د احمدشاه قاجار پرضد د مخالفت خبرې پیل شوې.

د رضاشاه د قدرت وړ خدمتونه، پوځي ځواکمنتیا، ښه سیاست او قاطع تدبیر د دې لامل شو چې قاجاري سلطنت راو پرزوي. رضاخان د شاه په غیاب کې چې په اروپا کې اوسېده، خپله ځواکمني ورځ په ورځ ټینګوله او همدارنګه یې دا هڅه کوله چې په پراخو تبلیغاتو سره دا وښیي چې احمد شاه د هېواد د برخلیک په اړه کومه پروا نه لري.

په پایله کې د ملي شورا مجلس د ۱۳۰۴ لمریز کال د لړم په میاشت کې د قاجاري سلطنت ړنګېدل او موقت حکومت یې د پوځ د مشر رضا شاه تر مشرۍ لاندې اعلان کړ. د ملي شورا د غوښتنې سره سم د هماغه کا ل د لیندۍ په میاشت کې د مؤسیسان مجلس جوړ کړ او نوموړي مجلس سلطنت رضاشاه پهلوي ته تفویض کړ او د قانون هغه مواد چې سلطنت یې د قاجاریه کورنۍ مختص ګڼه لغوه او پرنوي موادو کې سلطنت د پهلوي کورنۍ ته ځانګړې کړ.

دویمه نړیواله جګړه چې له ۱۹۳۹ – ۱۹۴۵م. کال پورې یې دوام وکړ، د ۱۳۲۰لمریز کـال د سمبلې میاشتې په ۲۵ مه د شوروي اتحاد او انګلسي قواوو له څو لوریو په ایران یرغل وکړ.

رضا خان په همدې میاشت کې سلطنت پرېښود او د هېواد چارې یې خپل مشر زوی او دسلطنت ولیعهد ته وسپارلې او پخپله سویلي افریقې ته لاړ. نوموړي له هېواد څخه بهر له دوه کاله، لس میاشتو او نهه ورځو وروسته د زړه د درېدو له امله وفات شو.

رضا خان د خپل سلطنت د واکمنۍ پر مهال یې مهمې چارې سرته ورسولې: د منظم پوځ جوړول، د محاکمو د جوړښت نوي کول، د مدني او جزایي قوانینو د مجموعې تدوین، د وګړو د شمېرنې د ادارې جوړول، د پېژندنې کارتونه یا تذکرې، د املاکو د ادارې رامنځ ته کول ، د سرتاسری ریل ګاډې پټلۍ جوړول، د ملي بانک جوړول، د روپو چاپول، دګمرکي تعرفو وضع کول، د ښارونو جوړول، د فرهنګ پراخول، د شرکتونو رامنځ ته کول، د پوهنتون جوړول، د ټولنیزو اصلاحاتو رامنځ ته کول او ولایتونو ته د هغو تعمیمول.

## محمد رضا شاه پهلوي

محمد رضا شاه پهلوي د رضا شاه پهلوي زوی او د پهلوي کورنۍ دویم پاچا و. هغه د ۱۲۹۸المریز کال د لړم په میاشت کې په تهران کې زېږېدلی، لومړنۍ زده کړې یې په پوځي ښوونځي کې او لوړې زده کړې یې په سویس کې بشپړې کړې. د ۱۳۲۰المریز کا ل د وږي (سنبلې) په میاشت کې په ایران باندې د پخوانۍ شوروي اتحاد او انګلیسانو د حملې له امله رضا شاه سلطنت پرېښود او محمد رضا شاه چې د سلطنت ولیعهد و، د سلطنت واک یې تر لاسه کړ. د وږي په ۲۵ مه یې د شورا په مجلس کې د وفادارۍ لوړه وکړه. په دې توګه په داسې تورو ورځو کې چې له یوې خوا نړېوالې جګړې نړۍ نیولې وه او له بله لورې د ایران هېواد د روس او انګلیس تر اشغال لاندې و، سلطنت ته ورسېد. د محمد رضا شاه د سلطنت د لومړنیو کلونو ورځې ډېرې بدې وې، ځکه چې د هېواد خپلواکي له ګواښ سره مخامخ وه او هم یې د ځینو برخو د تجزیې لپاره دسیسې جوړېدلې، د تهران د کنفرانس د اعلامیې په خپرولو سره چې د انګلیس، روس او امریکا مشرانو په کې ګډون درلود، تر یو حده دا پلان له منځه لاړ، چې له امله یې تر دویمې نړېوالې جګړې وروسته اشغالي قواو ایران پرېښود. د محمد رضاشاه د سلطنت له مهمو کارونو څخه یو هم د ایران د نفتو ملي کول دي، چې د ډاکټر محمد مصدق په مشرۍ تر سره شو.


محمد رضا شاه پهلوی

د محمد رضا شاه د حکمرانۍ د دورې له مهمو کارونو څخه دا دي چې ایران یې د ملګرو ملتونو د ټولنې سره یو ځای کړ، د تهران د تاریخي کنفرانس جوړول چې له امله یې د ایران ځمکنۍ بشپړتیا او خپلواکي تر لاسه شوه، د بغداد په نظامي تړون (سنتو) کې د ایران داخلېدل، د لومړي ځل لپاره د تلویزیون د دستګاه رامنځ ته کول، د مرکزي بانک جوړول ، د نالوستۍ پر وړاندې مبارزه، د سنا او شورا په مجلسونو کې د

ښځو د انتخاب حق، د لویو سړکونو جوړول، د سیاسي ګوندونو رامنځ ته کول، د موټر جوړولو کارخانې، د اورګاډو نوې پټلۍ، د ایران او روس تر منځ د ګاز د نل لیکي غځول، د نړۍ له هېوادونو سره د سیاسي اړیکو ټینګول، د نفتي فابریکو جوړول، له عراق سره د اوبو د سرحدونو ټاکل، د فرانسې او آلمان په مرسته د هستوي انرژۍ د مرکز جوړول هغه څه دي چې یادولی یې شو.


آیت الله سید روح الله خمیني

محمد رضا شاه د ۱۳۵۷ لمریز کال د مرغومي په میاشت کې د ایران د اسلامي انقلاب او پاڅون له امله د خپلې کورنۍ له ټولو غړو سره مصر ته ولاړ او تر ۱۸ میاشتو سرګردانۍ وروسته په ۱۳۵۹ کال کې د سرطان د ناروغۍ له امله په مصر کې مړ او هورې خاورو ته وسپارل شو.

د ایران اوضاع له ۱۳۵٦ لمریز کاله را وروسته له ډېرو چټکو بدلونونو سره مخ شو او هغه نهضت چې امام خمیني له ۱۳٤۱ لمریز کال څخه پیل کړی و، پراخې کچې ته ورسېد او په انقلاب واوښت چې په پایله کې د ۱۳۵۷ لمریز کا ل د سلواغې د میاشتې په ۲۲ مه نېټه بریالیتوب ته ورسېد. مصر ته د شاه له تېښتې څخه وروسته هغه نظام چې ۳۷ کاله پر هېواد حاکم و، له منځه ولاړ.

په پای کې د سلواغې د میاشتې په دولسمه امام خمیني ایران ته راوګرځېد او خلکو یې تود هر کلی وکړ. نوی دولت په ۱۳۵۷/۱۱/۱۵ نېټه د امام خمیني په حکم د مهندس بازرګان په صدارت رسمیت پیدا کړ، بازرګان ته دنده ورکړل شوه چې سربېره د هېواد پر اداره کولو ددې لپاره چې سیاسي نظام په اسلامي جمهوریت بدل شي، ټول پوښتنه وکړي او په دې توګه د ایران د تاریخ نوی څپرکی پیل شو.

## په ټولګي کې فعالیتونه

زده کوونکي دې په ټولګي کې پر دوو ډلو وویشل شي، لومړنۍډله دې د قاجاري حکومت د سقوط د لاملونو او دویمه ډله دې د پهلوي کورنۍ په برخه کې یو له بل خبرې اترې وکړي.

## پوښتنې

۱- د محمدشاه قاجار د سلطنت د ړنګیدو لاملونه په ګوته کړئ.

۲- د رضاشاه د سلطنت مهمې پېښې په ګوته کړئ.

۳- د محمد رضاشاه د سلطنت د ړنګېدو لاملونه کوم و؟

٤- د ایران اسلامي انقلاب په کوم کال او د چا تر مشرۍ لاندې بریالی شو؟

## له ټولګي څخه د باندې فعالیتونه

زده کوونکي دې د ښوونکو او منابعو په مرسته د دویمې نړیوالې جګړې د لاملونو او پر ایران باندې د هغه د اغېزو په اړه معلومات تر لاسه کړي.

# د چین د خلکو جمهوریت




په تېرو درسونو کې تاسې د چین د نفوس او ملي لړه کیو په برخه کې آشنایي تر لاسه کړې وه، په دې لوست کې د چین د تاریخي سوابقو او همدارنګه د ۱۹۴۹ میلادي کال د پېښو په هکله به معلومات وړاندې شي.

له دې کبله چې چین د درېوو لویو وچو اروپا ، آسیا او افریقا د تقاطع په محل کې موقعیت لري، نو په سیمه کې نړیوال او د لویو قدرتونو په منځ کې له ستراتېژیک اهمیت څخه برخمند دی. چین په شمالي نیمه کره، د آسیا په ختیځه برخه او د آرام سمندر په لوېدیځ ساحل کې پروت دی چې د ۹،٦ میلیونه کیلومتره مربع مساحت په لرلو د نړۍ درېیم لوی هېواد دی.

د چین د خلکو د جمهوریت پلازمېنه د پیکن(بی جېنګ) ښار دی، چې له ډېرو پخوانیو مرکزونو څخه ګڼل کېږي او تاریخي سابقه یې ۳۰۰۰ کاله مخکې ته رسېږي. یاد شوی ښار ۱۰۰۰ کاله مخکې جوړ شوی او اوه پېړۍ پخوا قوبلای خان (بېجېنګ) خپل دایمي پایتخت وټاکه او تر اوسه پرته له ۱۹۲۸-۱۹٤۹م. کلونو ګومین تانګ چې پایتخت یې نن جینګ ته انتقا ل کړ، بېجېنګ د چین پلازمېنه ده.

د چین ډېرې اوسېدونکې د خان (هان) له نژاده څخه دي، چې د مختلفو پېړیو را په دېخوا په همدې ځای کې اوسېدلي دي، د بني امیه د حکومت پر مهال د منځني ختیځ او له سند څخه د مدیترانې تر سویل او د افریقې تر شماله پورې سیمې د اسلام تر واحد بیرغ لاندې راغلې، خو څرنګه چې هغه وخت د اسلامي نړۍ په ځینو ځایونو کې کورنۍ جګړې رامنځ ته شوې، نو له چین سره د اړیکو د پراختیا په برخه کې پر مختګ ونشو.

د عباسي اميرانو په مهال په ځانګړې توګه هغه وخت چې د خلافت مرکز له دمشق څخه بغداد ته یو وړل شو، د اتمې میلادي پېړۍ په نیمایي کې، د تزیني شیانو د غوښتنې له کبله ددې اړتیا پیدا شوه چې د سیمې د هېوادونو په سوداګرۍ کې په ځانګړې توګه له چین سره د مرکزي آسیا د هېوادونو د ځمکې له لارې نوی والی راشي. خو د فارس خلیج، د عربستان له سویل، د افریقا له ختیځ، هند، د آسیا له سویل ختیځ تر چین پورې د اوبو له لارې راکړه ورکړه د ډېر اهمیت څخه برخمنه وه. په دې دوره کې یو قوي مرکزي دولت پر اسلامي نړۍ حکومت کاوه او له چین سره د پراخو سوداګریزو اړیکو مدافع و. په چین کې هم د تانګ سلسله د سوداګریزې لارې د امنیت ضمانت کړی و.


سون یات سن

له شپاړلسمې میلادي پېړۍ څخه وروسته پرتګالیانو او هالنډیانو کله چې هرمز په ایران، ګوا په هند او د چین په جنوب کې د ماکائو پر بحري او سوداګریزو لارو تسلط وموند، نو د چین اړیکي د ختیځ آسیا له نورو هېوادونو سره سمې کمزورې شوې.

د دیارلسمې میلادي پېړۍ په لومړیو کې د مغلو د یرغل له امله تر چینه پورې د سیمې هېوادونه او هم د منځني ختیځ سیمې په ورته برخلیک اخته شوې. په ۱۲۳۰ میلادي کې اوکتای قا آن له خپلو دوو ورونو جغتای او تولي او له خپلو زامنو سره د هوانګ هو د جلګې پر لوري حرکت وکړ او تر ۱۲۳٤ میلادي کال پورې یې د کای فنګ ښار ونیو.

په معاصرو پېړو کې د منچو دولت خپل سوداګري د انګلیس سره محدود او تر ځارنې لاندې ونیوله او د سوداګرۍ د اړیکو د کره کتنې غوښتونکي شول. انګلیسانو هڅه کوله چې د هند له لارې د نړۍ سره خپلې سوداګریزې اړیکې وساتي. د انګلیسانو اساسي موخې د چین سره د تریاکو سوداګري وه چې دغو اړیکو ناوړه پایلې درلودې چې د تریاکو د جګړې ۱۸۴۱- ۱۸۶۰میلادي لامل وګرځېده.
په شلمه میلادي پېړۍ کې لومړی د امپراتورۍ حکومتونه او وروسته د چین ملي جمهوریت منځ ته راغی. ډاکتر سون یات سن چې د چین د مدرن پلار په نامه مشهوردی، د ۱۹۱۱ میلادي کال د انقلاب مشر د چین لومړنی جمهور رئیس هم و چې ګومین تانګ دګوند مشري تر ۱۹۲۱میلادي کاله پورې پر غاړه وه.

## د ۱۹۴۹ میلادي کال انقلاب

د ۱۹۲۸ میلادي کال په پسرلي کې د مائو په مشرۍ هغه پاتې شونې ماتې خوړونکي بلواګران (فضل خزان) او هغو پوځیانو چې د نانچانګ په ګډوډیو کې یې برخه اخیستې وه، ژوندي پاتې شوي وو، د جوده په قوماندې یو له بله سره یو ځای شول. د دغه ناکامه ګډوډې، د دواړو مشرانو کتنه د کمونېست

ګوند قواوې له منځه وړلو څخه وژغورلې او دا پرېکړه یې وکړه چې پاتې قواوې د چین په سره پوځ کې تنظیم کړي او لومړنۍ هڅه چې کمونېست ګوند د چین د سره پوځ د ټینګښت لپاره جوړه کړه (چنګ کانګ شن) وه. همدارنګه مائو د ۱۹۳۱ میلادي کال په وروستیو کې د چین لومړنۍ شورایي جمهوري د ګیانګسي په سیمه کې اعلان کړ. د دویم نړېوال جنګ په پای کې په عملي توګه دوه چینه شتون درلود. یو هغه قلمرو و، چې د ګومیندان تر نظارت لاندې و او بل هغه آزادي سیمې وې چې د چین کمونېست ګوند رهبري کولې. ګومیندان سره د امریکې د متحده ایالاتو له خوا د وسلې او مهماتو، د پوځیانو د زده کړې او لېږد یې ختیځو برخو ته د ارتباطي لارو جوړونه او ساتنه، نظامي او ډیپلوماتیک ملاتړ کېده. د چین ډېموکراټیک قواوې له پوځي، اقتصادي اړیکو له پلوه د چانکای شیک رژیم په پرتله وروسته پاتې و، خو د خلکو ملاتړ او ملګرتیا یې لرله.


مائو

د چین کمونېست ګوند د مقاومت لپاره اغېزمنه تیاري نیولې وه. په اقتصادي برخه کې د ۱۹۴۶م. د مې د میاشتې د ٤ مې نېټې په مصوبه کې د چین د کمونېست ګوند مرکزي کمېټې دا پتېیلې وه چې د لویو ملاکانو ځمکې مصادره کړي. ددې تر څنګ یې د پوځي احضاراتو او جلب لپاره تدابیر نیولي وو. کمونېست ګوند وتوانېد چې د مختلفو مبارزو او نظامي لارې خلک د ګومیندان د حملو پر وړاندې چمتو کړي.

د ۱۹۴۸م. کال په اوړي او مني کې آزادي غوښتونکي پوځ په کلکو او بریالیو عملیاتو لاس پورې کړ. د ګومېندان پوځیان د چین په شمال ختیځ ښارونو کې محاصره او د ماتې سره مخامخ شول، د چین ډېره مهمه صنعتي سیمه چې د فلزاتو د ویلې کېدو کار خانې، د ډبرو د سکرو د راېستلو، ماشین جوړونې، د انرژۍ یا د لېږد رالېږد پرمختللې شبکې پکې وې کمونېستي قواوو ونیولې.

د ۱۹۴۸م. کال په پای کې کمونېست ګوند پر ټول شمالي او شمال ختیځ چین واکمن شو. همدارنګه په ۱۹٤۹ میلادي کال کې بېجېنګ پرته له مقاومته سقوط وکړ او د کمونېست ګوند قواوو لاسته ولوېد او د هماغه کال د نوامبر او اپریل د میاشتو ترمنځ د چین ښارونه بې له وینې تویونې د کمونېستانو لاسونو ته ولوېدل. چیکا یچېنګ د خپلو پوځیانو له کوچنۍ ډلې سره تایوان ته تېښته وکړه. د پیکن تر نیولو او د چانکای شیک د قواو تر ماتولو وروسته کمونېست ګوند بشپړ بریالتوب ته ورسېد او مائو د ۱۹٤۹م. کال د اکتوبر د میاشتې په لومړۍ ورځ د پکن د سولې په میدان کې د چین د خلکو جمهوریت اعلام کړ.

څرنګه چې د چین بهرنۍ سیاست له ۱۹٤۹م. کال څخه وروسته د مائو پر عقاید ولاړ و، نو د هغه افکارو او غبرګونونو پر بهرنیو او کورنیو مسائلو بشپړ اغېز درلود، ځکه نو د هغه هېواد بهرني سیاست

د ۵۰ مې لسیزې څخه وروسته د چین پر کورني لوړو ژورو او نړېوالو پیښو کې اغېز درلود.
مائو د انقلابي جګړو پر وخت او د قدرت د لاس ته راوړنې مخکې او وروسته هېڅ کله له یوې ثابتې الګو د خپل د سیاستونو د اجراکولو لپاره کار نه اخیسته، بلکې د چین د اقتصادي، سیاسي، پوځي او فني او نړېوالې اوضاع او ستراتېژیکي اصولو په پام کې نیولو سره به یې له انعطاف څخه کار اخیسته.
له ۱۹۸۰م. کلونو را په دې خوا د چین سیاستونو د سیمې له هېوادونو او نړۍ سره د پام وړ وده وکړه او له دې امله چین د منطقې په سیاستونو کې د پام وړ ارزښت لري چې په اوس وخت کې په سیمه کې د چین فعاله سیاسي ونډه ډېر د اهمیت وړ ده. پخوا چین په نړېوالو اړیکو او په ځانګړې توګه د مرستو په برخه کې اعتقادي (ایډیالوژیکه) بڼه درلوده او د بېجېنګ له پالیسۍ سره سم د سوسیالیزم او د استعماري ضد نهضتونو په پراختیا کې چې د نړۍ په مختلفو ځایونو کې تر سره کیدل له ۸۰ لسیزې راپدې خوا د دې په کچه او اندازې کې بدلون راغې.
د چین نوی سیاست او پالیسي اوس د نړېوالو مناسباتو د برابرۍ، متقابلې ګټې، د همکاریو په شکلونو کې د نوښت او د عملي او ښو پایلو پر اساس ولاړه ده. ددې سیاست موخه داده چې چین په نړېواله ټولنه کې اغېزمن او لوی نقش ولري. د پرانیستو دروازو د سیاست په رامنځ ته کولو او له نړۍ سره د سیاسي او اقتصادي مناسباتو په پراخولو سره چین د نړۍ د پرمختللو هېوادنو لکه جاپان، امریکا او لوېدیځې اروپا په کتار کې دربدلی دی. او نن ورځ په نړۍ کې د صنعتي هېوادونو او مطرحه قدرتونو له ډلې څخه ګڼل کېږي.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په جلا ډلو ووېشل شي. لومړنۍ ډله دې د چین د سوابقو، دویمه ډله دې د مائو د شخصیت په برخه کې یو له بله پوښتنې وکړي.

## پوښتنې

۱- د چین هېواد چېرې موقعیت لري او د هغه د تاریخي لرغونتوب په اړه څه معلومات لرئ؟
۲- جمهوري نظام په چین کې څه و خت جوړ، او لومړنی جمهور رئیس یې څوک و؟
۳- د چین د کمونیست ګوند د بریالیتوب لاملونه څه وو؟
٤- د دویمې نړېوالې جګړې وروسته په چین کې له اقتصادي، سیاسي او ټولنیز پلوه څه بدلون راغلی؟
۵- له اتیایمې لسیزې وروسته د چین بدلونونه څرنګه ارزوئ؟

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د فرهنګي شخصیتونو او منابعو په مرسته په چین کې د ۱۹٤۹ میلادي کال د انقلاب د لاملونو په اړه معلومات تر لاسه او بیا دې په ټولګي کې و وایي.

# تاجکستان




تاجکستان د افغانستان یو گاونډی هېواد دی، د نهم ټولگي په درسونو کې تاسې د هغوی د ژبې، نفوسو او په تاجکستان کې د مېشتو قومونو په اړه معلومات ترلاسه کړل، په اوسني لوست کې تاسې ته د نژادي ريښې، تاريخي سابقې او د هغه ځای د کلتوري حالت په هکله معلومات درکول کېږي.

د افغانستان په شمال کې يوه حاصلخېزه سيمه پرته ده چې ډېر عالمان او پوهان په دې باور دي چې آريايي نژاد خپلې د ژوندانه لومړنۍ ورځې او شپې د هندوکش د غرونو په لمن کې د جيحون او سيحون د رودونو پر غاړو تېرې کړې دي. د آرياييانو په پخواني کتاب کې د داسې ځمکې يادونه شوې چې آب او هوا يې د ځمکې پرمخ د خلد په نوم يادېده او زموږ نيکونه هورې لوی شوي دي او په پوره ډاډ سره ويلای شو چې له هغې ځمکې څخه موخه همدا د جيحون او سيحون زرېه ورونکې سيمه ده.

د هنري فيلډ د وينا له مخې (تاجکان مشهور خلك دي چې د ختيځ په ټوله سيمو کې خواره واره دي، نه يوازې په ايران او پاکستان کې، بلکې د ماورالنهر په ښارونو او په هغو هېوادونو کې چې د تاتاريانو تر ولکې لاندې دي، اوسېږي او د هغوی د ځينو د ويناوو له مخې د چين تر سرحدونو يا

لږ تر لږه تر تیبت پورې خپاره شوي دي.)

د پام وړ شمېر تاجکان په ازبکستان او قرغزستان کې اوسېږي، تاجکان د آریایانو له پخواني نژاده دي، دوی د ترکانو تر را څرګندېدو دمخه د مرکزي آسیا د ډېر پخواني تمدن ښکارندوی دي.

سکندر د میلادي څلورمې پېړۍ دمخه د تاجکانو خاوره ونیوله او د هغه ځای د خلکو تر مطیع کولو وروسته یې هورې له یونانیانو او مقدونیانو څخه یو لښکر کوټ جوړ کړ چې ۳۰ زره کسه یې هلته مېشت شول او د هغه ځای د خلکو سره یو ځای شول.

له میلاد څخه دوه پېړۍ مخکې سکاهانو د یونانیانو ځای ونیو. له ۳۹-۲۷ د میلاد څخه مخکې کلونو کې ګوای شانګ (کوشان) دیو چیو نور قبایل ونیول او د کوشانیانو امپراطوري یې جوړه کړه چې ویې کړای شول چې په مرکزي آسیا ۲۰۰ کاله حکومت وکړي. د کوشانیانو امپراطوري د درېیمې پیړۍ په پای کې کمزوري شوه او یو بل قوم چې رومیانو هغوی (افتالیت یا سپین هونان یا اهیاطله بلل، رامنځ ته شول.



امام علی رحمان

تاجیکان اکثراً له نژادي پلوه سپین نژاد پورې اړه لري او کله کله کولای شو چې د مغلو ځانګړنې په کې وګورو، علت یې دا دی چې هغوی او ترکانو یو له بله سره وده کړې ده.

د ترکي مهاجرینو پر له پسې یرغلو دا سیمه داسې ترکي کړه چې په ۱۳ مه میلادي پېړۍ کې یې مغل یرغلګر په ځان کې مخلوط او هغوی یې تر خپل اغېز لاندې راوستل.

د نولسمې پېړۍ په نیمایي کې چې د وخت په تېرېدو سره د روسیې د ځمکې پراخولو لړۍ سویل لوري افغانستان خواته پیل شوه، د تاجکانو ستر مرکزونه لکه اورا، توبه او خجند له روسیې سره

وتړل شول. د تاجکستان شمالي برخه د روسانو په قلمرو او سویلي برخه یې د بخارا د امیر تر فرمان لاندې راغله. په ۱۹۱۸ میلادي کال کې د شوروي د حکومت منګولې د مرکزي آسیا په مخکینیو نیول شویو سیمو کې ټینګې شوې، د همدې کال په اوږدو کې د تاجکستان شمالي برخه د خود مختار شوروي ترکستان یوه برخه شوه او په ۱۹۲۱ میلادي کې سرې قواوې د بخارا شرقي برخو ته ورغلې او د دوشنبې ښار یې ونیو.

د ۱۹۲٤م. کال د منځنۍ آسیا د جمهوریتونو د پولو ټاکلو په وخت کې د تاجک شورایي جمهوریت د ازبکستان جمهوري یو برخه شوه. په ۱۹۲۹م. کال کې د دوشنبې ښار د ستالین آباد او په ۱۹٦۱ کې بېرته د دوشنې په نامه ونومول شو او هم د ۱۹۲٤ کال د سرحدي ټاکنې په اساس ځینې ښارونه لکه سمرقند، بخارا، سرخان دریا، قشقادریا، د فرغانې سیمې له تاجکستان څخه بېلې شوې او د سرحدي ټاکنې له هماغه نېټې څخه په کې تر اوسه کوم بدلون نه دی راغلی.

د شوروي اتحاد تر ړنګېدو وروسته په ۱۹۹۱م. کال، کې تاجکستان خپله سیاسي خپلواکي اعلان کړه او د ملګرو ملتونو د ټولنې او ځینو نورو نړېوالو ادارو غړیتوب یې تر لاسه کړ.

**توضیح**

دوه لویې کورنۍ لکه صفاریان او سامانیانو پر تاجکستان حکومت کړی دی او د پېړیو په اوږدو کې د شاعرانو او فضلاو د زړه ورونکي مرکز حیثیت درلود. رودکي سمرقندي، کمال خجندی، رشید سمرقندی، خواجه عبدالمالک عصاری سمرقندی اوسیفی بخاری د دغو شاعرانو او فضلا څخه وو.

سمر قند او بخارا لکه بلخ د خپل وخت د علومو او فنونو له مرکزونو څخه شمېرل کېږي.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړنۍ ډله دې د تاجکستان د قومونو او دویمه ډله دې په تاجکانو باندې د روسانو د یر غل په اړه یو له بل سره مباحثه وکړي.

## پوښتنې

۱- د تاجکستان اوسېدونکي په کوم نژاد پورې اړه لري؟

۲- تاجکستان په کوم کال کې د شوروي ترکستان خود مختاره جمهوري یو برخه و ګرځېده؟

۳- تاجکستان په کوم کال کې خپله سیاسي خپلواکي تر لاسه کړه؟

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د ښوونکو او منابعو په مرسته په تاجکستان کې د اسلام د خپرېدو په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې ووایي.

# ازبکستان




ازبکستان د اسلامي کلتور او تمدن له لويو مرکزونو څخه ګڼل کېږي. په دې لوست کې تاسې د ازبکستان د موقعيت، اقتصاد، کلتور او لنډ تاريخ سره بلدېږئ.

ازبکستان داسې هېواد دی چې په مرکزي آسيا کې د دوو سيندونو آمو او سير دريا ترمنځ پروت دی، په دغه هېواد کې ٪۷۱ خلک ازبک دي، په ازبکستان کې نور لږه کي، لکه روسان، تاجکان، قزاقان او تاتار هم اوسېږي. په سلو کې ٦٣ خلک په کليو او باندو کې ژوند تيروي ، رسمي ژبه يې ازبکي او روسي ده. په ازبکستان کې تر ميلاد څخه دمخه انسانان اوسېدل، تر ميلادي شپږمې پېړۍ د مخه د دې هېواد ډېره خاوره د هخامنشيانو د قلمرو يو برخه وه.

په( ۳۲۹ مخکې د ميلاد) کې مقدوني سکندر، سمرقند او اوسنی ازبکستان د باختري يونان يوه برخه وګرځوله.

د شپږمې ميلادي پېړۍ په نيمايي کې د ترکي خانانو تر ولکې لاندې راغی.

عربانو د اوومې ميلادي پېړۍ په دويمې نيمايي کې د مرکزي آسيا مهمې برخې ونيولې. قتيبه بن مسلم

د خراسان عربي والي ته دنده ورکړل شوه چې ماورالنهر په بشپړه توګه فتح کړي. هغه په شلو کلونو کې د چین او کاشغر تر پولو نژدې او په شمال کې تر تاشکند پورې لښکرې راورسولې او په پای کې يې سمرقند، تاشکند او فرغانه ونيوله.


دطلا کارۍ جومات

د اسلام په ظهور او خپرېدلو سره په لسمه ميلادي پيړۍ کې د ازبکستان اوسنۍ سيمه د سامانيانو د قلمرو يوه برخه شوه او د وخت په تېرېدو سره پرې غزنويانو، سلجوقيانو، خوارزمشاهيانو، مغلانو او تيموريانو حکومت کاوه.

مغولو د خپلو يرغلو په ترڅ کې د منځنۍ آسيا لويې برخې ونيولې، خو په تدريج او د مغلو د واکمنۍ په منځ ته راتګ، په ځانګړې توګه د تيمور له واکمنۍ څخه وروسته چې سمرقند يې د خپلې امپراتورۍ پلازمېنه وټاکله، ازبکانو د لومړي ځل لپاره د يوه قوم په توګه را څرګند شول.

ازبکانو خپل نوم له ازبک خان څخه ۱۲۸۲-۱۳۴۲م. کال چې د اسلام په دين مشرف شوي و، اقتباس کړ، همدارنګه ابواخير خان (۱۴۱۲)م. کال د شبيان ځوان ځايناستې د جوجي زوي په مرکزي آسيا کې د ازبکو د قدرت بنسټ کېښود.


اسلام کريموف

د ازبکستان ۸۵ سلنه خلک مسلمانان او حنفي مذهبه دي، د يو شمېر تېريو سره سره په اسلامي سنتونو او ارزښتونو ولاړ او پابند دي، په دې هېواد کې اسلامي ارزښتونه لکه: نکاح، تدفين،

خاوروته د مړي سپارل، د هلکانو سنتول، قرباني، د قرآن مجيد تلاوت، د جوماتونو جوړول او د صدقو ورکول رعايت کېږي.

د ازبکستان د خلکو ملي ترکيب د ۱۹ مې پېړۍ له نيمايي او د شلمې پېړۍ له پيل څخه بدلون موندلی دی. د روسيې په وسيله د منځنۍ آسيا له اشغال وروسته، دې سيمې ته د ډېرو روسانو ورلېږل، په ځانګړې توګه د ۱۹۱۷ ميلادي کال د (اکتوبر انقلاب) څخه وروسته د روسيې، قفقاز او اوکراين بزګران او کارګران دې سيمې ته راوستل شول.

په پخواني شوروي اتحاد کې د ۱۹۹۱ ميلادي کال چټکو بدلونونو د ازبکستان مشرتابه ته دا فرصت ورکړچې د ياد شوي کال د سپټمبر په لومړۍ نېټه ازبکستان د يوه خپلواک هېواد په توګه اعلان کړي. د ازبکستان کمونيست ګوند منحل اعلان شو او لومړنۍ ټولټاکنې تر سره شوې او اسلام کريموف د رايو په ګټلو سره د جمهور رئيس په توګه وټاکل شو.

ازبکستان د خپلواکۍ تر اعلانولو وروسته د ملګرو ملتونو د ټولنې غړيتوب ترلاسه او په يو شمېر اقتصادي، نړېوالو او سيمه ييزو ټولنو کې داخل شو.

د منځنۍ آسيا په هېوادونو کې ازبکستان د ډېرو ښو اقتصادي په تېره بيا د کرنې په برخه کې د ښو امکاناتو لرونکی هېواد دی. ازبکستان د مسو، د سکرو ډېرو او نفتو کانونه لري، د فولادو د صنعت په

**توضيح**

سمرقند او بخارا د اسلامي تمدن له مهمو او لويو مرکزونو نه ګڼل کېږي. د اسلامي تمدن ډېرې نښې او آبدات هلته د يادګار په توګه پاتې دي، چې د بېلګې په توګه د شيردار مدرسې، طلاکارۍ مدرسې، د النغ بېګ مدرسې، بي بي خانم جومات، د نمازګاه جومات، خانقاه د ګورګاني امير تيمور مقبره، د خواجه عبدالله احرار مزار، رودکي مزار، د شاه اسماعيل ساماني مزار، د خواجه بهاوالدين نقشبند د آثارو مجموعه، مزارونو او آبدو نومونه يادولی شو.

تولید، غذایي توکو، منسوجاتو او پنبې په پرمختګ کې يې بریالیتوبونه په برخه شوي دي. کرنه ددې هېواد د اقتصاد مهمه برخه ګڼل کېږي چې په اقتصادي پرمختیا کې **۲۸** سلنه ونډه لري او ۳۵ سلنه وګړي په کې په کار بوخت دي ازبکستان په نړۍ کې د پنبې دویم صادروونکی هېواد دی.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوه ډلو وویشل شي لومړۍ ډله دې د ازبکستان د اسلامي ابداتو په اړه او دویمه ډله دې د مهمو صنایعو په اړه په خپل منځ کې مباحصه وکړي.

## پوښتنې

۱- د ازبکستان موقعیت په لنډه توګه توضیح کړئ.

۲- په ازبکستان کې کومې قومي ډلې ژوند کوي؟

۳- کومو سلسلو یا کورنیو په ازبکستان کې واکمني کړې ده؟

٤- د ازبکستان خلك په کومو ژبو خبرې کوي؟

٥- د ازبکستان د مهمو صنایعو نومونه واخلئ.

## له ټولګي څخه د باندي فعالیت

زده کوونکي دې د ازبکستان نقشه رسم او د هغې پر مخ دې د ازبکستان ولایتونه، صنعتي ښارونه او ګاونډي هېوادونه په نښه کړي.

# ترکمنستان


د ترکمنستان د هېواد نقشه

ترکمنستان په نړۍ کې د ګازو له سترو صادروونکو هېوادونو څخه دی.
د نهم ټولګي په تاریخ کې تاسې د ترکمنستان د موقعیت، نفوس او ژبې سره آشنا شوئ. په دې لوست کې تاسې د تاریخي پېښو، د ترکمنانو د اصل او نسب او د هغه ځای د فرهنګي او اقتصادي حالت په برخه کې تفصیلي معلومات حاصلوئ.

ترکمنستان یو لرغونی هېواد دی. چې د زرګونو کلونو د پخواني تمدن زانګو بلل کېږي او د ګوک تپه، نمازګاه تپه د مروښار، نساء قلعه او اورګنج غونډې لوی فرهنګي مرکزونه په کې شتون لري. د څېړې له مخې ترکمنان مغلو ته ورته دي. په نسبي توګه لوړ، د تورو وېښتو لرونکي او نري اندامه دي.

د لرغون پوهنې پلټنې ښيي چې ترکمنستان تېروخت په منطقه کې د نړۍ د ښارويو او د کرنيزو مرکزونو څخه يو مرکز و. د برونز په پېرکې ډېرو لويو تمدنونو له دې ځای څخه منشا اخيستې ده. د ترکمنستان د لرغونو تمدنونو څخه يو د ((اليتن اپ)) معماري ده چې د مينا او چاجاکلو تر مينځ موقعيت لري په دې ځای کې يوه مقبره شتون لري چې د معمارۍ له پلوه د بابل آثارو ته ورته والی لري او همدا رنګه لرغون پوهانو ثابته کړې چې په دې سيمه کې ليک ژبه موجوده وه او خلک د عالي او لوړ فرهنګ څخه برخمن وو. چې ترکمنستان له تاريخ څخه مخکې د انسانانو د استوګنې ځای و. په ٦- ٤ ق- م پېړيو کې د هخامنشيانو د امپراطورۍ يوه برخه وه او وروسته د پارتانو لاس ته ولوېده.

د ترکمنانو د نژاد د ريښې په برخه کې مختلفې نظريې شته، خو هغه ځمکې چې ترکمنان په کې اوسي، له ډېرې زمانې څخه د انسانانو د استوګنې ځای او ډول ډول کلتورونو او تمدنونو په کې وده کړې ده.

ترکمنستان د خپل جغرافیوي موقعیت له مخې د وریښمو د لویې لارې په برخه کې مهم نقش لوبولی او د پېړیو په اوږدو کې د لوېدیځ او ختیځ ترمنځ نښلوونکې کړۍ پاتې شوې ده. په پنځمه میلادي پېړۍ کې دا سیمه د هون او هپتالیانو د یرغل له امله او ساسانیانو د شانګ وروسته د هغوی لاسته ورغله. دا د لوی خراسان شمال ته د ترکي قومونو لومړنی نفوذ و.

په اوومه پېړۍ کې عربو پر خراسان د یرغل په ترځ کې دا سیمه هم ونیوله، مرو د خراسان د عربو حکمرانانو پلازمېنه ګڼل کېده او پر ماورالنهر یې حملې له همدې ځایه کولې. مروې ته د مامون الرشید او امام رضا راتګ په تاریخ کې هم ثبت دی.

که څه هم دې سیمې او ماورالنهر ته د ترکانو لومړنی راتګ په پنځمه میلادي پېړۍ کې د هیاطله د هجوم پر وخت و، خو د غور یا اغوز د ترکانو یرغل د مغلوستان له پولو څخه په لسمه میلادي پېړۍ کې د دې سیمې د خلکو جمعیتي جوړښت درې ورې کړ، سلجوق خان دمسلمانو ترکو په مرسته وتوانېده چې پر سیحون خپله واکمني ټینګه کړي او د سلجوقیانو د کورنۍ بنسټ یې کېښود.

په څلورمه هجري پېړۍ کې مقدسي غربي تاریخ لیکونکی لومړنی کس و، چې د ترکمن په نوم طایفې څخه یې یادونه وکړه او پر دې ټکي یې ټینګار وکړ چې لومړني مسلمان ترکان وو، نو ځکه د (ترک ایمان) په نامه له هغوی څخه یادونه شوې ده.

د جوامع التواریخ د کتاب پر اساس د ترکمنانو نسبي سلسله داسې تنظیم شوې ده: بافث بن نوح، دیب یا قوي، قراخان او غوزخان، د ترکمنانو اصلي نیکه اورخان کرخان دی.

ترکمنستان د مرکزي آسیا د مختلفو قومونو د اوسېدو ځای دی، خو ډېر خلك یې ترکمنان دي او لاندې قبیلې په کې اوسېږي:

١- عالي ایلي
٢- اتا
٣- چاودار
٤- امرای (یمرلي)
٥- ارساری
٦- ساکار (ساقار)
٧- سایور
٨- ناریق
٩- تکه اریموت
١٠- ګوکلان


د ترکمنستان د پارلمان ودانۍ

څرنګه چې زیاترو ترکمنانو د تاریخ په اوږدو کې د ښارویو

د روزنې له لارې ژوند کړی، نو ددې لپاره چې دغه اقتصادي فعالیت فعال وساتي، نو په کليو کې اوسېږي. د مغلو يرغل او د خوارزمشاهانو مادي وضع سخته خرابه کړې وه. د مرکزي آسيا ډېر ودان ښارونه ټول ويجاړ او د مغولو لاسونو ته ولوېدل. ياده شوې سيمه په دوو برخو چې شمالي برخه يې مغلو او د ازبيکو خانانو او جنوبي برخه يې ايلخانانو ونيوله.

له ۱۵-۱۷م. پېړۍ څخه دا سيمه د شيبک خان ازبک تر ماتې وروسته صفويانو ونيوله، په ۱۸۵۰-۱۸۷۳ ميلادي کلونو کې د روسيې سياسي تحريکاتو د ترکمنستان پراخه سيمه د بخارا، خيوې، فرغانې، خو قند او قازان په حکومتونو ووېشله، روسانو په يوه منظم ځنځيري حرکت سره بخارا، خيوه او فرغانه تر ولکې لاندې راوړل او په پای کې په ۱۸۸۱م. کـال روسي جنـرال اسکوبلوف پر اخا ل باندې د يرغل او د گوک تپې قلعې په نيولو سره وتوانېد چې پر ترکمنانو بريالی او ترکمنستان اشغال کړي، د ترکمنستان لوېديځه برخه په خپله خوښه د روسيې سره يو ځای شوه.

په روسيه کې د ۱۹۱۷ ميلادي کا ل تر انقلاب وروسته ترکمنستان د شوروي ترکستان د جهموريت يوه برخه شوه.

تر خپلواکۍ وروسته د ترکمنستان اقتصاد د نورو نويو جمهوريتونو په څېر په دولتي مالکيت ولاړ و. د خپرو شويو آثارو له مخې د هېواد د ټولو محصولاتو ۹۵ سلنه د دولتي واحدونو له خوا توليدېدل. بانکونه، بيمې، بهرنۍ سوداگري او ټول لوی پلورنځي دولتي وو، دغه اقتصادي سيستم چې پر دولتي بنياد ولاړ و، د نوښت د نشتوالي، لږ کارۍ، فلجوونکې بېروکراسۍ او د تکنالوژۍ د نشتوالي له امله له سختو ستونزو سره مخ وه او د پورته ستونزو د له منځه وړلو لپاره دولت په دوو کارونو لاس پورې کړ:

۱- په مسکو او د کامنولتې د نورو غړيو هېوادونو پورې د ځان تړنې د رېښو پرې کول.

۲- د ملي اقتصاد بنسټ اېښودل او د طبيعي ځېرمو څخه په خپلواکه توگه گټه اخيستنه د کورني اړتياوو د رفع کولو په منظور. چې د دې مامول د پوره کولو لپاره ځو مرحله يزه ملي ستراتيژي مطرح شوه.

ترکمنستان د روسيې له فدارسيون څخه وروسته د مشترک المنافع هېوادونو په منځ کې د ۲،۷ ترېليون متر مکعب گازو په در لودو سره دويم هېواد دی. د ترکمنستان په سلو کې ٤۸ سلنه خلک په کرنيزو او د ځارويو په چارو بوخت دي. ددې هېواد په سلو کې ۸۰ سلنه ځمکه د اوبو د سرچينو له نشتوالي سره مخامخ ده. په ترکمنستان کې مالدارۍ نسبتاً ښه وده کړې ده. د قره قل پسونو د نرمو وړيو او پوستکو په لرلو سره په کې ډېر روزل کېږي. د ترکمنستان يو بل صنعت غالۍ جوړونه ده چې د ترکمني ښځو په منځ کې رواج او نړيوا ل شهرت لري، ترکمنستان په مرکزي آسيا کې له ځانگړې جغرافيوي پلوه مناسب ستراتېژيک موقعيت لري.

• دغه هېواد تر ځمکې لاندې ډېرې لويې په ځانگړې توگه د نفتو ذخيرې لري چې همدې ټکي د سيمې د هېوادونو پام ترکمنستان ته را اړولی دی.

• ترکمنستان اروپا او ځينو نورو هېوادونو ته دګاز د انتقال پوتنسيال لري او د اروپا د انرژۍ د تامينوونکو هېوادونو څخه ګڼل کېږي.

• ترکمنستان د کسپين د سمندرګي له ساحلي هېوادونو څخه دی چې د انرژۍ څېرمو په لرلو سره له اقتصادي لوړ ارزښت څخه برخمن دی.

ترکمنستان د پخواني شوروي اتحاد د ٦٠ کلنې واکمنۍ په وخت کې د نورو منځنۍ آسيا د جمهوريتونو په څېر د بدلونونو له مخې يو منجمد تاريخ تېر کړ، يوازې د يادولو مهمه پېښه په کې د قره قوم د کانال جوړول و.

په پخواني شوروي اتحادکې د سياسي بحرانونو په ډېرېدو سره کمونيست حزب منحل او د ترکمنستان ډيموکراټيک ګوند د ١٩٩١م. کال د اکتوبر په ٢٦ مه جوړ شو، چې مشري يې نيازاف پر غاړه لرله او د اکتوبر په ٢٧ مه ترکمنستان رسماً خپله خپلواکي اعلان او د يوه خپلواکه هېواد په توګه په رسميت وپېژندل شو. يو کـال وروسته ددې هېواد د پارلمان له خوا نوی اساسي قانون جوړ او د جمهور رئيس واک يې په کې ډېر کړ.

تر خپلواکۍ وروسته ترکمنستان د ملګرو ملتونو د ټولنې، د خپلواکو مشترک المنافع هېوادونو، د آسيا پراختيايي بانک، اسلامي پرمختيايي بانک، اسلامي کنفرانس د سازمان، دکار د نړېوا ل سازمان او دلسګونو نورو نړېوالو ټولنو غړيتوب ترلاسه کړی دی.



## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي. لومړنۍ ډله دې د ترکمنستان د موقعيت په اړه، دويمه دې د ژبې، دربمه دې د ترک تبارانو د استوګنې او څلورمه دې د ترکمنانو د نژادي ريښې په برخه کې يو له بله پوښتنې وکړي.



## پوښتنې

١- د ترکمنستان د مشهورو قبايلو نومونه واخلئ؟

٢- روسانو په کوم کال کې ترکمنستان ونيوه؟

٣- ترکمنستان له خپلواکۍ څخه وروسته څه ډول ستراتيژي طرح کړه؟



## له ټولګي څخه د باندې فعاليت

زده کوونکي دې د ترکمنستان نقشه رسم او د هغې پر مخ د صنعتي ښارونو ولايتونه اوګاونډې هېوادنه په نښه کړي.

# د دريم څپرکي بيا کتنه

د دولسم ټولګي د تاريخ د کتاب دريېم څپرکی چې د (ګاونډيو هېوادونو) تر عنوان لاندې جوړ شوی دی او د چين، پاکستان، ايران، تاجکستان، ترکمنستان، او ازبکستان د هېوادونو معاصر تاريخ په کې شامل دی. د دې څپرکي په تاليف کې تر ډېرې کچې هڅه شوې چې زده کوونکي په لنډه توګه د هر هېواد له پېښو، موقعيت، نفوسو، دوديزو ژبو، کلتوري ميراثونو، اقتصاد او صنعت سره آشنايي او پېژندګلوي پيدا کړي. په ځينو لوستونو کې هڅه شوې ده چې د ګاونډيو هېوادونو هغه تاريخي پېښې چې په ځانګړو دورو کې رامنځ ته شوي دي، فهرست کړي او پېښې په کې په مفصله توګه څېړل شوي دي چې زده کوونکي د تاريخي پېښو ژور ته داخل او پرې پوه شي دا د دې لپاره چې تاريخي پېښې ورته روښانه او د پوهېدو وړ شي. تاريخ له وچ سياسي چوکاټه راووځي چې د بشري ټولنې د فعاليتونو فرهنګي، سياسي او اقتصادي غوښتنه ده. سره له دې چې په يوه څپرکي کې د ګاونډيو هېوادونو د ټولو تاريخي پېښو او حوادثو يادونه يو ډېر ګران کار دی، خو د توان تر کچې هڅه شوې ده چې خپلې دغې موخې ته به رسېدلي يو.

# څلورم څپرکی

په شلمه پیړۍ کې د نړۍ مهمې پېښې

# د څپرکي موخې

۱- په شلمه پیړۍ کې د نړۍ د ځینو مهمو پېښو سره بلدتیا.

۲- د لومړۍ نړیوالې جګړې او د هغې د لاملونونه تحلیل کول.

۳- دویمه نړیواله جګړه او د هغې لاملونه تحلیل او تفسیر وکړای شي.

٤- د ملګرو ملتونو د جوړښت ضرورت درک کړای شي.

٥- په صنعتي ځواک بانديې د جاپان د بدلون سره پېژندګلوي.

٦- د پخواني شوروي اتحاد د ټوټې کېدلو د لاملونو تحلیل او تفسیر وکړای شي.

۷- د آلمان، فرانسې او انګلیس سیاسي جوړښت سره پېژندګلوي تر لاسه کړي.

۸- د نقشو او اطلسونو څخه ګټه پورته کړي.

# لومړۍ نړیواله جګړه او د هغې لاملونه



په دې لوست کې زده کوونکي د لومړۍ نړیوالې جګړې له علتونو، لاملونو او دهغو د ناوړو پایلو په اړه معلومات تر لاسه کوي.

لوېدیځې نړۍ د شلمې پېړۍ په لومړیو کې پر نړۍ پوځي او اقتصادي واک تر لاسه کړ. په نوموړې پېړۍ کې اروپایي سرتېرو او مقاماتو پر هند، سویل ختیځې آسیا او د افریقا پر ډېرو برخو حکومت کاوه. د بهرنۍ سیاست مامورینو او اروپایي سوداګرو د چین، ایران او عثماني امپراتورۍ اقتصادي او سیاسي چارې په لاس کې درلودې. په لوېدیځه نیمه کره کې متحده ایالات د لوېدیځو قدرتونو په ډله کې نوی مطرح شوی و او په ټوله نړۍ کې په یوه ځواکمن قدرت بدلېده.

د وضعې او حالاتو بدلون داسې و چې د عمومي جګړې لپاره یې لار هواروله. د دغه حالت په پای کې لومړۍ نړیواله جګړه پېښه شوه. لومړی د بازارونو پر سر اقتصادي سیالۍ پیل شوې، وروسته د اروپا اتحاد، هېوادونه یو د بل پر ضد متحد کړل. دریېم، ټولو قومي ډلو قوي ملي پاله احساسات درلودل.

د اروپا صنعتي هېوادونو د نفوذ او مستعمره کولو پر سر یو له بله سره سیاسي سیالۍ درلوده. انګلستان تر **۱۸۷۰** م. کاله پورې په ټوله نړۍ کې تر ټولو مخکې صنعتي هېواد و. وروسته المان په صنعت پیل وکړ

او په چټکۍ سره صنعتي شو او د ورلو راوړلو او اړیکو نوې شبکه یې رامنځ ته کړه. الماني سوداګرو له انګلیسي سوداګرو سره د آسیا په ختیځ، منځني ختیځ او لاتینه امریکا کې بریالۍ سیالۍ پیل کړې.

د نړیوال واک پر سر سیالۍ په سمندري وسله واله سیالۍ باندې بدلون وموند. مهم هېوادونه لکه: د امریکا متحده ایالات او جاپان د خپلو کشتیو د چلونې د خوندیتوب لپاره خپل سمندري ځواک پیاوړی کړ.

انګلستان په **۱۸۸۴**م. کال کې د کشتیو او لویو سمندري توپونو جوړول پیل کړل. المان چې په اقتصادي برخه کې د هغه اصلي دښمن و، ډېر ژر یې د هغه هېواد تقلید وکړ.

د شلمې میلادي پېړۍ په لومړیو کې د المان د سمندري ځواک چټکه پیاوړتیا د انګلستان د سمندري ځواک ته یو ګواښ و. انګلیس هڅه وکړه چې د سمندري پوځي سیالۍ د پای لپاره له المان سره یوه موافقه وکړي. کله چې دغه هڅه ناکامه شوه، انګلستان د متحدینو په لټه کې شو.

فرانسې او انګلستان د خپلو هېوادونو په منځ کې په **۱۹۰۴**م. کال کې یو تړون لاسلیک کړ انګلستان په **۱۹۰۷** م. کې له روسیې سره هم متحد شو او د دې درې هېوادونو اتحاد په (مثلث) تبدیل شو.

د اروپا مهمو قدرتونو په هغه وخت کې په دوو اتحادونو کې یو د بل مخې ته ولاړ وو او دواړو خپل ځانونه وسله وال کول او د عمومي جګړې ګواښ ډېر شو. د بهرني سیاست بدګومانۍ او بې باورۍ سوله لا د خطر سره مخامخ کړه. تر لومړۍ نړیوالې جګړې دمخه د اتریش ولیعهد سارایو د بوسنې مرکز کې ووژل شو.

المان نېت درلود چې یوازې له خپل لوی متحد اتریش څخه ملاتړ وکړي. بل متحد یې ایټالیه وه. برعکس روسیې تصمیم ونیو چې صربستان سره مرسته وکړي. روسي پوځ لومړی پوځ و چې د جګړې لپاره تیار شو. د المان حکومت له روسیې څخه وغوښتل چې له دې کاره لاس واخلي. ځکه له دې یې وېره درلوده چې روسیه او فرانسه به یې پر خاوره په یوه وخت یرغل وکړي. روسیې د المان غوښتنه رد کړه او د **۱۹۱۴**م. کال د اګست په لومړۍ نېټه المان لومړی روسیې ته او بیا فرانسې ته د جګړې اعلان وکړ.

المانیانو د بلژیک ناپیيلتوب تر پښو لاندې او د **۱۹۱۴** م. کال د اګست په **دریمه** یې پر هغه هېواد یرغل

وکړ. یوه ورځ وروسته انګلستان المان او اتریش ته د جګړې اعلان وکړ. په صربستان د اتریش د یرغل تر پرېکړې وروسته په یوه اونۍ کې د دوو لویو اتحادو هېوادونه په جګړې کې ښکېل شول.

لومړۍ نړیواله جګړه د **۱۹۱۴** م. کال د اګست په لومړۍ نېټه پیل شوه او د دواړو ترون هېوادونو هیله درلوده چې په چټکۍ سره به بریالي شي، البته ټول په دغه وړاندوینه کې تېروتي وو. روسان په چټکۍ سره منسجم شول. فرانسې فکر نه کاوه چې المان به د بلژیک له لارې حمله وکړي. ایټالیې د المان او اتریش سره په اتحاد کې له جګړې سرغړونه وکړه. اتریش د خپلې ځانځانۍ له امله ونه توانېد چې پر وړوکي صربستان بریالی شي.

امریکا له اروپا څخه د جلاوالي سنت وساته. او خپله بېطرفي یې اعلان کړه. ختیځې او لوېدیځې جبهې د جګړې اصلي میدانونه وو. لوېدیځه جبهه د سوېس له سرحده پیل او د فرانسې په خاوره کې د شمال تر روده ادامه درلوده. ختیځه جبهه د لهستان په خاوره کې تر روسیې پورې غځېدلې وه. په **۱۹۱۶** م. کال کې ختیځه جبهه په بالکان کې پراخ‌سېتل شوه.

متفقینو په **۱۹۱۵** م. کال کې هڅه وکړه چې د عثماني امپراتورۍ په ماتولو سره په دردانیل کې د پښې ایښودو ځای پیدا کړي. د متفقینو په زرګونو کسانو چې ډېری یې استرلیایي ځوانان وو، د هغو غرونو په لمنو کې چې عثماني ترکانو په توپونو او وسلو ترې دفاع کوله، خپل ځانونه له لاسه ورکړل. د عثماني امپراتورۍ عربي اتباعو په **۱۹۱۶** م. کال کې د ترک د حاکمانو پر ضد پاڅون وکړ. دغه پاڅون د ملک فیصل په مشرۍ چې په هاشمي اصلي کورنۍ پورې یې اړه درلوده، له عربستان څخه یې فلسطین او سوریې ته خپور شو. انګلستان او فرانسې دواړو د عربي پاڅون کوونکو غوښتنې پوره کړې چې په پایله کې عثماني امپراتوري له منځه ولاړه د عثماني خلافت له منځ تللو سره مسلمانانو خپل د سیاسي یووالی سمبول له لاسه ورکړ.

المانیان د **۱۹۱۶**م. کال په فبرورۍ کې له اقتصادي ستونزې سره مخ شول. د المان د قومندې مرکز د دې لپاره چې له دې ستونزې ووځي، ویې غوښتل، چې په فرانسه کې د وردن پر ښار یرغل وکړي،

البته دا يې نه ګڼله چې په جبهه کې به د متفقينو ځواک لوی برى تر لاسه کړي، بلکې دا هيله يې درلوده چې د دفاع په ترڅ کې به د فرانسې ځواکونه په تدريجي توګه له منځه يوسي.

ساتونکو له وردن څخه د فشار د له منځه وړلو لپاره له انګليسانو او فرانسويانو څخه يو مرکب ځواک جوړ کړ او د سوم سيند په اوږدو کې يې يوه درنه حمله پيل کړه. د سوم سيند د جګړې په لومړۍ ورځ انګليسانو د **۶۰۰۰۰** په شاوخوا کې تلفات ورکړل. په لومړيو **۲۴** ساعتونو کې په هره دقيقه کې **۱۵** انګليسان مړه او **۳۰** کسه ژوبل شول. انګليسانو د سوم(Somme)[1] په جګړې کې نوې وسلې واردې کړې. جګړې تر دسمبره پورې دوام وکړ. په دې جګړه کې المانيانو **۳۳۰۰۰۰** او فرانسويانو **۳۵۰۰۰۰** کسه تلفات ورکړل. د ايټاليا په جبهه کې د تلفاتو شمېر له **۳۰۰۰۰۰** څخه ډېر شو. په ختيځه جبهه کې ښايي د **۲،۱** ميليون کسو پورې په جګړې کې وژل شوي وي. جګړې له يو ميليون څخه ډېر زخميان درلودل.

د **۱۹۱۵** کال د مى په **۷**مه يوه الماني تحت البحري کښتۍ پر لوسى تانيا اقيانوس پيما نومې کښتۍ چې د ايرلېنډ په سيند کې د حرکت په حال کې وه، يرغل وکړ او دا کښتۍ په چټکۍ سره ډوبه شوه او **۱۲۰۰** کسه په کې مړه شول. له **۱۰۰** څخه ډېر غرق شوي، امريکايان وو. لوسي تانيا انګلستان ته په پټه وسله وړله.

د لوسي تانيا غرقېدو المان او متحده ايالات د جګړې ډګر ته راښکېل کړل. لس مياشتې وروسته ترنځتيا ډېره شوه. د **۱۹۱۶**م. کال د مارچ په **۲۴**مه المانيانو فرانسوي ولاړه کښتۍ د مانش په سمندرګي کې غرقه کړه او يو ځل بيا د امريکا خلک ووژل شول.

لومړۍ نړيواله جګړه د نړۍ د تاريخ لومړنۍ هوايي جګړه وه. د جګړې په لومړيو مرحلو کې ډېرو هېوادونو د دښمن د واحدونو موقعيت د معلومولو لپاره له الوتکو څخه ګټه اخيسته.

متحده ايالاتو او متفقينو يې د سمندري مراقبتي نظام په وسيله د المانيانو يرغلو ته ځواب ورکړ. يو شمېر کښتيو د ځارنې لپاره يو له بله سره حرکت کاوه.

د **۱۹۱۸**م. کال په مارچ کې د برست ليتوفسک تر تړون **۱۸** ورځې وروسته الماني ځواکونه دې ته اړ

۱-سوم(Somme) د فرانسې په شمال ختيځ کې د مانش د سمندرګي په نامه يوه سيمه ده.

شول چې له روسيې څخه لوېديځې جبهې ته راشي. المانيانو په لوېديځه جبهه کې وحشتناکه حمله پيل کړه. د درنې توپخانې په بمبارد او ګازي بمونو سره يې حمله وکړه. انګليسي، فرانسوي او بلژيکي واحدونه يې د سيند لوري ته په شا کړل. د **۱۹۱۸**م. کال په سپتمبر کې بلغارستان له موقتي ډزبندۍ سره موافقه وکړه. عثماني امپراتوري د اکتوبر تر پايه تسليم شوه. د **۱۹۱۸**م. کال د نوامبر په درېيمه اتريش، مجارستان د ډزبندۍ منل لاسليک کړل چې په جګړې کې د هغوی د لاسوهنې د پای معنا يې لرله.

د **۱۹۱۸**م. کال د نومبر په **۱۱**مه سهار سر تا سري ډزبندي وشوه او په لوېديځه جبهه کې د توپونو درزا غلې شوه. په پای کې تر څلورو کلونو وروسته لومړۍ نړيواله جګړه پای ته ورسېده.

د رسمي شمېرنو له مخې په لومړۍ نړيواله جګړه کې د ځمکنيو او سمندري قواو **۹،۱** ميليونه سرتيری ووژل شول او يا يې له ژوبلېدو او ناروغيو له امله ژوند له لاسه ورکړ. تر **۲۱** ميليونه ډېر پوځيان ژوبل، **۷،۴** ميليونه کسه بنديان يا ورک شول. دغه شمېرنه د ملکي خلکو په برخه کې نه ده.

## د جګړې اقتصادي پايلې

د فرانسې، لهستان(پولنډ)، سربستان ډېرې شمال ختيځې برخې او د اېټاليا شمال ختيځې سيمې په کنډوالو بدلې شوې. يوازې په فرانسه کې **۴۸۰۰** کيلو متره ځنګلي ځمکه وسوځېده او د **۱۲۸۰۰** کيلو متره مربع په شاوخوا کې کرنيزه ځمکه يې له منځه لاړه. د وردن په شاوخوا کې تر جګړې وروسته تر يوه نسله پورې مېکانيزه کرنه ناشونې وه، له دې امله چې ټوله ځمکه د اوسپنو ټوټو نيولې وه.

مادي زيان کليوالي او ښاري خلک دواړه له اقتصادي ستونزو سره مخامخ کړل. بزګرانو تر يو ميليون ډېر څاروي او حيوانات له لاسه ورکړل. په ښارونو کې تر **۶۰۰۰۰۰** ډېرې ودانۍ ورانې او يا زيانمنې شوې. پلونه، لويې لارې، تونلونه، د اورګاډي پټلي د تلګراف او ټېلېفون مزي له منځه لاړل.

لومړۍ نړيواله جګړه د بشريت په تاريخ کې تر ټولو ورانوونکې او د ډېر لګښت لرونکې جګړو څخه شمېرل کېږي. دې جګړې د روسيې، المان، اتريش، مجارستان او عثماني ترکيې امپراتوري له منځه

یووړه. د رومانوف، هونسولرن او هاپسبورگ لړې له واکه لري شوې. د اروپا او سویل لوېدیځې اسیا د نقشو ډېرې برخې له سره وکښل شوې. فرانسوي امپراتوري د فاتحینو تر منځ ووېشل شوه.

جگړې فرانسه او روسیه ورانه کړه. المان، بلژیك او انگلستان یې هم زیانمن کړل. د امریکا متحده ایالات انزوا او گوښه والي ته ستون شو. لوړې او ناروغیو او جگړې ډېر تلفات را منځته کړل او د اروپا پخوانۍ امپراتورۍ یې یو له بله سره بېلې کړې. تر څلورو کلونو اوږدې جگړې وروسته سوله منځ ته راغله.



## په ټولگي کې فعالیت

زده کوونکي دې په ټولگي کې پر دوو جلا ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د جگړې پر علتونو او دویمه ډله دې د اروپایي هېوادونو د سیالیو په اړه یو له بله سره خبرې وکړي.



## پوښتنې

۱ــ لومړۍ نړیواله جگړه په کوم کال کې پیښه شوه؟

۲ــ په دواړو جلا اتحادونو کې کومو هېوادونو گډون درلود؟

۳ــ په دې جگړه کې کومو هېوادونو ډېر تلفات ولیدل؟



## له ټولگي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د جگړې د پایلو په اړه د منابعو په مرسته معلومات تر لاسه او په ټولگي کې دې ووایي.

# دويمه نړيواله جګړه



آډولف هټلر

په دې لوست کې به د دويمې نړيوالې جګړې څخه د مخه د بحرانونو په اړه او همدارنګه د جګړې د لاملونو او پايلو په اړوند معلومات تر لاسه کړئ.

اقتصادي بحران او رکود د ۱۹۲۹- ۱۹۳۳م. کلونو تر منځ په المان کې په ډېره چټکتيا سره پراختيا ومندله. او دې بحران درې کاله دوام وکړ، په صنايعو کې پر سلو کې۴۰ ټيټوالی راغی. د بيکارانو شمېر ۷.۵ ميليونو تنو ته ورسېد، واقعي مزد له ۲۵ څخه تر ۴۰ په سلو کې را ټيټ شو. کرنه د حوادثو قرباني شوه او يو شمېر بانکونه له ماتې سره مخامخ شول اقتصادي ناورين د ويمار جمهوري جوړښت متزلزل کړ او د هيټلر د رامينځ ته کېدو لپاره يې په سياسي ډګر کې زمينه برابره کړه.

اډولف هيټلر په ۱۸۸۹م. کا ل په اتريش کي زيږيدلی او د لومړۍ نړيوالې جګړې وروسته يې د نازي ګوند جوړ او په ۱۹۲۰م. کال کې همدې ګوند مشري يې تر لاسه کړه چې ملي پالنه، افراط پالنه، نژاد پالنه او پر يهودو تيرى د هغه له اصولو څخه وو. نوموړی په لومړۍ نړيواله جګړه کې څو واري ټپي شوی و د نازيو له شعارونو څخه يو هم دا وه ( نن آلمان سبا جهان)، هيټلر عقيده در لوده هر ځوک چې په منځنۍ اروپا مسلط شي کولای شي پر ټوله اروپا او نړۍ تسلط پيدا کاندي.

د اروپا قدرت غوښتونکي واکمنان د سولې لپاره ګواښ ګڼل کېدل. په شوروي اتحاد کې ستالين غوښتل

چې خپله واکمني پراخه کړي. د موسولیني په مغزو کې د روم د لرغوني امپراتورۍ خیال ګرځېده.
په **۱۹۳۶**م. کې د ملتونو ټولنه بېخي بې باوره شوې وه. د همدې کال په اکتوبر کې هټلر او موسولیني د روم ـ برلین محور جوړ او هغه یې (پولادي تړون) ونوماوه. لږ وروسته جاپان او ایټالیا د کمنترن تړون لاسلیک کړ چې موخه یې د کمونېزم د پراخوالي مخنیوی و. د جاپان امپراتورۍ د **۱۹۳۷**م. کال په دوبي کې د چین پر شمال یرغل وکړ. د ملتونو ټولنه یو ځل بیا ونه توانېده چې سوله وساتي. هټلر په **۱۹۳۸**م. کې اتریش له آلمان سره یو ځای کړ او وروسته یې د سودت آلماني سیمې چې د وارسای دتړون له مخې د چکوسلواکیې برخې ګرځېدلې وې، بېرته د آلمان سره یو ځای کړې. هټلر او موسولیني دډسمبر په میاشت کې د انګلستان او فرانسې د لومړیووزیرانو سره د میونیخ په ښار کې وکتل.
د آلمان پوځ د **۱۹۳۹**م. کال د ډسمبر د میاشتې په لومړیو کې پر لهستان(پولنډ) یرغل وکړ. د المان پوځ له پوځي تاکتیک څخه ګټه واخېسته او په چټکۍ سره یې د لهستان پوځ دړې وړې کړ.
انګلستان او فرانسې په **۲۴** ساعتونو کې آلمان ته د جګړې اعلان وکړ او له دې سره بیا دویمه نړیواله جګړه پیل شوه. پخوا له دې چې په اروپا کې جګړه پیل شي، د ایټالیا دیکتاتور موسولیني ایتوپیا نیولی و. د افریقا په شمال کې د مصر او سویز کانال پر سر جګړه ونښته. د سویز د کانال په نیولو چې هر یو بریالی شوی وای، له دې لارې یې کولای شول چې په مستقیمه توګه خپلې جنګي بېړۍ د اسیا جبهې ته ورسوي. هر هېواد چې شمالي افریقا نیولې وای، د منځني ختیځ ټولې د تیلو ذخېرې سیمې یې تر ولکې لاندې راتللې.
د متفقینو ځواکونو د مصر په العلعین کې د نازیانو پرمختګ ودراوه او په **۱۹۴۲**م. کې یې د هغوی پر ضد یرغل پیل کړ او **۹۰۰۰** آلماني پوځیان یې اسیر کړل. دویمه نړیواله جګړه چې په اروپا کې پیل شوه، نو المانیان ورته په بشپړه توګه تیار وو، جګړیز وسایل یې نوي او پوځیانو یې ښه زده کړه کړې وه. د **۱۹۳۹**م. کال په ډسمبر کې د المان لښکرو پر لهستان یرغل وکړ او د لهستان پوځ یې په څلورو اوونیو کې د ننه دړې وړې کړ. په دې وخت کې شورویانو د هغه پټ تړون له مخې چې له آلمانیانو سره یې کړی و، د لهستان ختیځ یې ونیو. له لومړۍ نړیوا لې جګړې څخه وروسته فرانسې له المان سره خپله پوله پیاوړې کړې وه او په ختیځ کې یې د یرغل د مخنیوي لپاره د **۳۲۰** کیلو مترو په اندازه اوسپنیز استحکامات جوړ کړل. دغه استحکامات د یوه سیاستوال په نامه، د ماژینو د خط په نامه ونومول شول. د دغو استحکاماتو ډېره

برخه د ځمکې لاندې جوړه شوې وه.
المان پر لهستان یرغل وکړ. فرانسوي ځواکونه د ماژینو په خط ځای پر ځای شول او انګلیسان د مانش له سمندرګي څخه تېر شول او د فرانسې په شمال کې دېره شول. دانګلیسانو سمندري ځواکونو د المان بندرونه محاصره کړل.
د جګړې په اوږدو کې شورویانو په ختیځ کې د لاتویا، استونیا او لېتوانیا دولتونه د بالتیک په حوزه کې اتحاد ته اړ کړل. شوروي واحدونو د فنلاند پوځ ته ماتې ورکړه او د روسیې پخوانۍ پولې یې پرانیستې.
د ۱۹٤۰م. کال د اپریل په نهمه آلماني ځواکونو د هوا او ځمکې له لارې په ډنمارک او ناروې یرغل وکړ. ډنمارکیو پوځ نه درلود او فوراً تسلیم شول. نارویژانو غوښتل جګړه وکړي خو د دریو اوونیو په اوږدو کې تسلیم شول.
د **۱۹٤۰**م. کال د اپرېل پر لسمه نازیانو پر بلژیک او هالنډ یرغل وکړ. آلمانیانو له سمندري ځواک، پیاده، ټانک، بم غورځوونکو الوتکو او کوماندويي ځواک څخه ګټه اخیسته او د ماژینو د خط په شاو خوا کې ځای پر ځای شول.
آلمانیانو د همدغه کال په جون کې د لوېدیځ په جبهه کې خپل ځواکونه ځای پر ځای کړل او وروسته یې د شمالي دښتو له لارې پر فرانسې حمله وکړه. د ماژینو له خط څخه تېر شول او له شپږو اونیو څخه په لږه موده کې پاریس ته ورسېدل.
فرانسه د **۱۹٤۰**م. کال د جون په **۲۲**مه آلمان ته تسلیم شوه. مارشال هانري پتن د لومړۍ نړیوالې جګړې سپین ږیري او اتل نوی حکومت جوړ او له آلمان سره یې د ډزبندۍ تړون لاسلیک کړ. د تسلیمي د شرایطو پر بنسټ د فرانسې پوځ بې وسلې شو. آلمان د فرانسې په شمال کې پاریس ونیو. د فرانسې دولت د فرانسې سویل ته چې اشغال شوی نه و، انتقا ل شو.
د انګلستان د خلکو مشري د وینستون چرچل په نامه نوي صدراعظم په لاس کې واخیسته، انګلیسانو غوښتل چې جګړې ته دوام ورکړي.
د جګړې لمنه د بالکان شبه جزیرې ته هم ورسېده. موسولیني د **۱۹٤۰**م. کا ل په مني کې پر یونان یرغل وکړ. د **۱۹٤۰**م. کال د مني په پای کې مجارستان او رومانیه د محور له ځواکونو سره یو ځای

شول. د ۱۹۴۱م. کال په لومړیو کې بلغاریا له فاشیستانو سره یو ځای شوه. ۱۹۴۱م. په پسرلي کې نازیانو پر یوګوسلاویا یرغل وکړ او پر یونان پوره بریالي شول. په افریقا کې په مصر او سومالیه کې د ایټالیا ځواکونه له انګلیسانو سره وجنګېدل. د ۱۹۴۱م. کال د پسرلي پورې ټوله شمالي افریقا د جګړې په صحنه بدله شوه.

له انګلستان سره جګړه اوږده شوه. د لویدیځې جبهې د بریالیتوب په برخه کې هټلر ناهیلی شو، د دې پر ځای یې ختیځ ته پام شو او کمونېزم یې خپل اصلي دښمن وګاڼه. نوموړی په دې عقیده و چې پر شوروي اتحاد بریالیتوب پر نړۍ د تسلط یو ګام دی او د جولایي پر ۲۲مه المان د روس په ضد عملیات پیل کړل. د آلمان واحدونو د ۳۲۰۰ کیلو مترو د جبهې په اوږدوالي د بالتیک له سیند څخه تر تور سمندرګي پورې پر شوروي یرغل وکړ. آلمانیانو د لهستان په ختیځ، د بالتیک سیمي او وروسته یې پر روسیې او کراین یرغل وکړ او په ۱۹۴۱م. کې د لېننګراد ښار محاصره پیل شوه، چې سل ورځې اوږده شوه. نازیانو د اکتوبر په میاشت کې اوکراین ونیو او کریمه ته داخل شول.

د ۱۹۴۱م کال په نوامبر کې آلماني ځواکونه او تدارکاتي خطوط یې ډېر پراخه شول. د آلمان په لوی جګړېز ماشین کې شنیدلی حالت رامنځ ته شو.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي لومړۍ ډله دې د جګړې د لاملونو او دویمه ډله دې د آډولف هیټلر د ونډې په اړه په خپل منځ کې مباحثه وکړي او پایلي دې ټولګي ته وړاندې کړي.

## پوښتنې:

۱- دویمه نړیواله جګړه په کوم کال کې پیښه شوه؟

۲- محور ګروپ کومو هېوادونه ته ویل کېدل؟

۳- آلمان په کوم کال په شوروي اتحاد تېری وکړ؟

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت:

زده کوونکي دې د خپلو ښوونکو او منابعو په مرسته د محور هېوادونو د ماتې په اړه معلومات تر لاسه او بیا دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

# پر هند او چين باندې د جاپان يرغل



په دې لوست کې به د جاپان يرغل د هندوچين په جزايرو، د محور ماتې او د دويمې نړيوالې جګړې د پايلو په اړه ورسره آشنا شئ.

په داسې حال کې چې د هټلر پوځ په ټوله اروپا کې خپرېده، جاپانيانو په ختيځ کې خپلو پر مختګ ته دوام ورکاوه او غوښتل يې چې پر پراخه سيمه مسلط او له ځمکې او منابعو څخه يې ګټه واخلي. جاپان په **۱۹۳۲**م. کال کې منچوريا ونيوله. په **۱۹۳۷**م. کال کې د جاپان او چين واحدونو د پيکن په شاوخوا کې يو له بله سره په جګړه بوخت وو. د جاپان پوځ ښار ونيو او وروسته يې د سويل په لور حرکت وکړ او تر **۱۹۳۹**م. کال پورې يې د چين ځلورمه برخه ونيوله، خو چينايان تسليم نه شول او خپله پلازمېنه يې يانګ تسه ته يووړه او په خور وورو جګړو يې لاس پورې کړ.

جاپان په **۱۹۳۹**م. کال کې د هانيان جزيره او هندوچين ساحل ته نژدې نورې کوچنۍ جزيرې ونيولې. دغه بريالیتوب د انګلستان تدارکاتي مسير له هانکانګ څخه تر سينګاپوره پورې په خطر کې واچاوه. دغو يرغلونو د امريکا متحده ايالات پريشانه کړل. د **۱۹۴۱**م. کال په لومړيو کې يې له جاپان سره خپلې ټولې اړيکې پرې او په امريکا کې د دې هېواد پانګه ضبط شوه. د همدې کا ل په ډسمبر کې جاپانيانو په هاوايي او فلپين په جزيرو کې د امريکا پر مرکزونو او هم په هانګ کانګ او ملايا کې د انګلستان

پر پوځي مرکزونو یرغل وکړ. جاپان د امریکا پرالوتکو او هوایي هډو چې د آرام اقیانوس په پرل هاربر کې یې لنگر اچولی و، بمباري وکړه. جاپاني پیلوټانو ۱۸ جگړییزې امریکایي کشتۍ او ۱۸۰ امریکایي الوتکې له منځه یووړې او د۳۵۰۰ کسو په شاو خوا کې یې ووژل.
جاپانیانو په آرام سمندرکې د ۱۹۴۱م. کال د ډسمبر د حملو په ترځ کې ډېر لوی امتیازات لاس ته راوړل.
د ۱۹۴۲م. کال په لومړیوکې د هغو موخو د لاس ته راوړلو لپاره چې هغه د آسیا د ختیځې برخې نیول وو، پر مخ روان وو. دجاپان امپراتوري د برما په جگړې کې پر مخ لاړه. گورم، د ویک جزیره او د فلپاین جزایر یې ونیول. هانگ کانگ، سینگاپور، او د شرقي هند جزایرو هم سقوط وکړ. جاپاني ځواکونو پر بریتانیوي هند یرغل ته ځان چمتو کړ. په استرالیا، نیو زیلانډ او د هاوایي په جزیروکې یې هم پر مختگ وکړ. داسې ښکاره کېده چې هټلر او موسولیني بریالیتوب تر لاسه کړ. د دې په مقابل کې د متفقینو د ځواکونو مشرانو (د انگلستان د صدراعظم چرچل، د شوروي رهبر ستالین او د امریکا د جمهور رئیس روزولټ) په مشرۍ د تهاجمي یرغل لپاره یو له بل سره یو ځای شول. پرل هاربر له یرغل څخه وروسته د امریکاگوښه والی پای ته ورسېد. د ۱۹۴۲ م. کا ل په می کې د امریکا او آسټرالیا هوایي او سمندري ځواکونو په آرام سمندر کې د جاپانیانو پرمختگ ودراوه. یوه میاشت وروسته د امریکا متحده ایالاتو د جاپان لویه کشتۍ چې ختیځ لوري ته د میدوي پر جزیرې د یرغل لپاره د حرکت په حال کې وه، ودروله. د امریکا متحده ایالاتو او جاپان د درېو ورځو لپاره د میدوي د جزیرې په شمال کې په هوا او سمندر کې سره وجنگېدل چې په پای کې د امریکا متحده ایالات بریالی شو.

## د محور ماتې

د ۱۹۴۲م کال د نوامبر په میاشت د شوروي کلکو یرغلو المان شاتگ ته اړ کړ. هټلر خپلو پوځونو ته امر وکړ چې وجنگیږي، خو د ۱۹۴۳م. کال په جون کې د آلمان پوځونه تسلیم شول.
د ۱۹۴۳م. کال په دوبي کې انگلیسي ـ امریکایي ځواکونو سیسلي ونیوله. د همدې کا ل په وروستیو میاشتو کې متفقینو ورو ورو شمال ته پرمختگ کاوه. په آرام سمندر کې یې جاپانیان جزیره په جزیره شا تگ ته اړ کړ.
د ۱۹۴۳م. کال په نوامبر کې روزولټ، چرچل او ستالین په تهران کې سره وکتل. هغوی پر فرانسې د متفقینو د یرغل پر نقشې سره خبرې وکړې. د دې نقشې پر بنسټ د متفقینو ځواکونه باید د مانش له

سمندرڅخه تېر شوي او د نرماندي په سواحلو کې پیاده شوي وای.
په دې یرغل کې ځه د پاسه له ۱۷۵۰۰۰ سرتیرو، او هم له ډېرو تجهیزاتو څخه کار واخستل شو. په نرماندي کې د ځواکونو تر پیاده کېدو ۱۰۰ ورځې وروسته، د ۲ میلیونو په شاوخوا کې سرتیري فرانسې ته داخل شول او د ۱۹۴۴م. کال د اگست په ۲۵ مه یې پاریس آزاد کړ.
شوروي پوځ د۱۹۴۴م. کال په جون کې ستوني، لیتوانیا، لیتویا، رومانیه او بلغارستان ونیول او همدارنگه انگلیسانو آلمانیان د یونان له خاورې وویستل. د ۱۹۴۵م. کال په فبرورۍ کې روزولټ، چرچل او ستالین په ایټالیا کې د توري سمندرگي د څنډې په آرامځای کې یو له بل سره ولیدل. همدارنگه مشرانو د دې هڅه وکړه چې په اروپا کې تر جگړې وروسته د مسایلو د حل لپاره توافق وکړي. هغوی د آلمان د وېش نقشه د نیول شوې سیمې په توگه وکښله.د فرانسې سرتیرو یې د متفقینو د مهمو ځواکونو لپاره سیمه مشخصه کړه. هغه اروپایي دولتونه چې له نازیانو څخه خپلواک شوي وو، باید د ځانونو لپاره یې حکومتونه انتخاب کړي وای. همدارنگه روزولټ دا ومنله، چې شوروي د ملگرو ملتونو له ټولنې سره یو ځای شي، نو په ختیځه اروپا کې به د دې هېواد امتیازات تضمین کړي.
د ۱۹۴۵ م.کال د مې په لومړیو کې د برلین د ښار په سړکو کې تر خونړیو جگړو وروسته، دغه ښار د روسانو پر وړاندې سقوط وکړ. د هټلر ژوند د هغه تر ځمکې لاندې پټنځای کې پای ته ورسېد. د جاپان سره لا جگړه روانه وه. د ۱۹۴۵م. په اپرېل کې روزولټ ناڅاپه مړ شو. هري ترومن چې جمهوري ریاست ته ورسېد، د مهنتن له پټې طرحې خبر شو چې یو شمیر پوهانو او مهندسانو د دغه نامه لاندې د لومړنۍ اتومي وسلې په جوړولو لگیا وو.
متفقینو د جولایې په ۲۶مه د جاپان حکومت ته التیماتوم ورکړ او له هغه هېواد څخه یې وغوښتل چې تسلیم شي، خو جاپان التیماتوم ونه مانه.
د ۱۹۴۵م. کال د اگست په۶ مه د امریکا د اوږده واټن الوتکې د جاپان د هیروشیما پر ښار بم وغورځاوه. دې بم د ښار تر ۶۰ مې برخې ډېره ورانه کړه او تر ۱۵۰۰۰۰ ډېر کسان یې ووژل. خو سره له دې بیاهم جاپان تسلیم نه شو. د ۱۹۴۵م. کال د اگست پر نهمه ـ B ۲۹ ډول الوتکې پر ناگاساکي بل بم راوغورځاوه او ۴۰۰۰۰ کسان یې ووژل. پاتې ۷۰۰۰۰ کسه په ډېره وحشتناکه توگه سوي وو.
جاپان د ۱۹۴۵ م. کال د سپتمبر پر دویمه تسلیم شو. د تسلیمۍ خبر ټولې نړۍ ته مخابره شو. د

متفقينو ډېرو پلويانو د ډېرو لويو غونډو په ترڅ کې په لويو ښارونو کې خوشحالی او جشنونه پيل کړل. په وروستيو اوونيو کې روسيې منچوريا ونيوله. په اندونيزيا او ملايا کې جاپاني ځواکونه انګلستان ته تسليم شول. د امريکاه متحده ايالاتو ځواکونو جاپان ونيو او چين يې آزاد کړ او په دې توګه په تاريخ کې د بشرتر ټولو خونړۍ جګړه پای ته ورسېده.

## د دويمې نړيوالې جګړې پايلې

دويمې نړيوالې جګړې ډېر مالي او ځاني زيانونه رامنځ ته کړل. په دې جګړه کې له **۴۰ ـ ۵۰** ميليونو پورې انسانان ووژ ل شول. د امريکا متحده ايالاتو خپل **۳۰۰۰۰۰** ځواکونه له لاسه ورکړل. د جګړې لګښت تر يو ټريليون ډالرو ډېر و. **۲۳۰** ميلياردە ډالر د محور هېوادونو ولګول. د امريکا متحده ايالاتو له **۳۱۷ ـ ۳۴۱** ميلياردو ډالرو پورې ولګول. لويو ښارونو لکه وارسا، لندن او برلېن ډېر درانده زيانونه وليدل. هېروشيما او ناګاساکي کابو ببخي له منځه لاړل. د اروپا او آسيا ټولو خلکو خپل کورونه، کروندې او همدارنګه دندې له لاسه ورکړې. کليساګانې، کارخانې، سړکونه، د اوسپنو لارې او بندري تاسيسات د بمباريو او د توپونو د اور له امله وران شول. د نړۍ د ډېرو هېوادونو پرمختګ او وده د خپل اصلي مسير څخه منحرف شو.

### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ويشل شي لومړۍ ډله دې د رهبرانو ونډې لکه روزولت، چرچل او ستالين د محور هېوادونو په ماتې کې او دويمه ډله دې د جګړې د پايلو په اړه په خپل منځ کې مباحثه وکړي او پايلې دې ټولګيوالو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱ـ د امريکې متحده ايالاتو څرنګه په جګړه کې ګډون وکړ؟

۲- جاپان ولې په دويمه نړيواله جګړه کې امريکې ته تسليم شو؟

### له ټولګي څخه د باندې فعاليت

زده کوونکي دې د اروپا نقشه رسم او پرمخ دې د محور او متفق هيوادونه په نښه کړي.

# د ملګرو ملتو جوړېدنه



په دې لوست کې به د ملګرو ملتونو د سازمان د رامنځ ته کېدو او د هغه د ضرورت په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

د ۱۹۴۵م. کال په اوږدو کې د متفقو هېوادونو استازو له جګړې څخه وروسته د نړۍ د موقعیت په اړه د تصمیم نیولو لپاره لیدنه وکړه. هغوی په دې توافق وکړ چې داسې نړیوال سازمان جوړ شي چې ټول خپل ځانونه د هېوادونو په منځ کې د سولې او همکارۍ لپاره متعهد وساتي او هم د هغو خلکو په برخه کې چې د محور هېوادونو ځواک یې جوړاوه، د سرنوشت په اړه یې تصمیم ونیسي. متفقینو ملګري ملتونه جوړ کړل. د متفقو پنځوسو هېوادونو استازیو په سانفرانسیسکو کې د ۱۹۴۵م. کال له اپرېل څخه تر جونه پورې سره ولیدل. هغوی د نړیوال سازمان د منشور په برخه کې توافق ته ورسېدل. دا منشور په ۱۹ فصلونو او ۱۱۱ مادو کې تدوین شو او د لاهې د نړیوالې محکمې د دېوان اساسنامه د دغو ۵۰ هېوادونو لاینفک برخه شوه. غړیو هېوادونو په دې توافق وکړ چې د سولې د ساتنې او پرمختلنې لپاره به د ټولو ملتونو حقوق او حاکمیت په مساوي توګه په پام کې ساتي او نړیواله همکاري یې هم تضمین کوي.

د ملګرو ملتونو سازمان لویه شورا لري. عمومي شورا د ټولو غړیو هېوادونو له استازیو څخه جوړېږي،

خو ربښتنینی ځواک د امنیت له شورا سره دی. د امریکا متحده ایالات، انګلستان، فرانسه، روسیه او چین په دې شورا کې دایمي څوکۍ لري. شپږ نور هېوادونه په دوراني توګه ټاکل کېږي.

د امنیت د شورا رایه په اکثریت ولاړه وي. د پرېکړې د تصویب په صورت کې د پنځو دایمي هېوادونو رایه د اکثریت رایې یوه برخه وي. په دې توګه له دغو پنځو لویو هېوادونو څخه هر یو د دې شورا د پرېکړې د وېټو حق لري. اقتصادي او اجتماعي شورا، نړیواله محکمه او سرمنشي، د ملګرو ملتونو اصلي جوړښت تشکیلوي. متفقینو پرته له ملګرو ملتونو، د جګړې د وضعیت د ژر اداره کولو او په راتلونکې کې د پراختیا او ودې لپاره نور ګڼ شمېر سازمانونه هم جوړ کړل، چې بېلابېل فعالیتونه د نړۍ په مختلفو هېوادونو کې تر سره کوي.

د ملګرو ملتونو د سازمان په جوړېدنه کې د ډېرو اقداماتو لاس دی، چې هر یو په کې اغېزمنه ونډه اخیستې ده. د دې اقداماتو له جملې څخه کولای شو چې په زماني ترتیب سره د بین المتحدینو د اعلامیې خپرېدل، اتلانتیک منشور، د ملګرو ملتونو اعلامیه، د مسکو او تهران کنفرانسونه، د دامبارتن اوکس او بالتا کنفرانس او په پای کې د سانفرانسیسکو کنفرانس ته اشاره وکړو.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړنۍ ډله دې د نړیوالو سازمانونو او دویمه دې د دې سازمان د موخو په برخه کې یو له بله سره خبرې او مشاجرې وکړي او پایله دې په ټولګي کې ووايي.



## پوښتنې

۱ـ د ملګرو ملتونو ټولنه څنګه جوړه شوه؟

۲ـ څو هېوادونه د امنیت د شورا دایمي غړي دي؟

۳ـ د ملګرو ملتونو ټولنه په کوم کال کې جوړه شوه؟



## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د دیرشو هیوادونو لیست ترتیب کړي چې د ملګرو ملتونو غړیتوب ولري او په ټولګي کې دې ووايي.

# په یوه صنعتي ځواک باندې د جاپان بدلون




آیا پوهېږئ چې جاپان څرنګه په یو صنعتي هېواد واوښت؟ په دې لوست کې به د دې پوښتنې ځواب تر لاسه کړئ.

پخوا تر دې چې د جاپان پر صنعتي بدلېدنې خبرې وکړو، ښه به دا وي چې د هغه هېواد د تېر تاریخ په برخه کې څه پوه شو. تر میلاد ۶۶۰ کاله پخوا د جاپان لومړنی امپراتور پر تخت کېناست. په هغه وخت کې د مذهبي قوانینو ( شینتو) له مخې امپراتور له فوق العاده ځواکه برخمن و. په منځنیو پېړیو کې ساموریان پر جاپان مسلط شول. پخوا د امپراتور د ګارډ کسان د ساموایي په نامه یادېدل. په دې وخت کې جاپان په یوه فیوډالي، کمزوري او وروسته پاتې هېواد بدل شو.

د جاپان معاصر دوران د امپراتور (موتسوهيتو) له تخت ناستې ۱۸۶۸م. څخه پېلېږي. د هغه د امپراتورۍ مودې تر ۱۹۱۲م. پورې دوام درلود، چې د (ميجي) د دورې په نامه يادېږي. په اداري او پوځي برخه کې ډېر اصلاحات رامنځ ته شول او جاپان په يوه نړيوال ځواک واوښت. د چين او جاپان او جاپان او روس په جګړې کې يې چين او روس ته ماتې ورکړه او په همدې وخت کې وتوانېد چې پر کوريا، تايوان او سخالين پر ټاپو تسلط پيدا کړي.

د جاپان هېواد له يو شمېر وړو او لويو ټاپوګانو څخه جوړ شوی دی او په لرې ختيځ کې پروت دی. سره له دې چې ځمکه يې لږه ده، د وګړو شميرېې يو ۱۴۰ ميليونو ته رسېږي. تر لومړۍ نړيوالې جګړې او د آلمان تر ماتې وروسته، جاپان د صنعتي او لوی ځواک کېدنې لپاره ډېرې هلې ځلې وکړې او له آلمان او اروپايي هېوادونو څخه د فني زده کړې په لړ کې په چټکۍ سره له اقتصادي او پوځي پلوه په يو سيمه ييزه ځواک بدل شو. هغه و چې تر دويم نړيوا ل جنګ د مخه د تخنيکي همکارۍ له امله له آلمان سره نږدې شو او د دويم نړيوا لې جګړې په پيل کې له آلمان او ايټاليې سره په (محور) دولتونو کې د متفقينو پر ضد شامل شو. په دويمې نړيوالې جګړې کې يې په پاسفيک (آرام) سمندر کې خپل ډېر متصرفات له لاسه ورکړل او د ( هېروشيما او ناګاساکي) تر اټومي بمبارد وروسته پرته له کوم قيد و شرطه امريکا ته تسليم شو.


د جاپان د پارلمان ودانۍ

تر جګړې وروسته او د سولې په راتلو سره يې د نويو اندونو او قوي مديرانو په مټ د صنعتي کېدو او د خپل اقتصاد په جوړونه لاس پورې

کړ او د امریکې متحده ایالاتو ته یې کار پېژندونکي، تکنیشنان او اهل فن د زده کړې لپاره ولېږل او تر ځنګ یې په هېواد کې معقولې، خصوصي او نوې پروژې پلې کړې. له امریکایي نویو طرحو څخه اقتباس ورځ په ورځ جاپان ته د پرمختګ لارې خلاصې کړې او تر اوسه یې دغه سیاست دوام لري.

جاپان له سلو کالو وروسته په دې وتوانېد چې د نړۍ په یوه ستر صنعتي هېواد بدل شي. که چېرته د صنعتي کېدو نېټه د انګلستان د صنعتي انقلاب د رامنځ ته کېدو نېټه وګڼو، نو پاتې ټول لوېدیځ هېوادونه دې مرحلې ته دوه سوه کاله وروسته رسېدلي دي او که چېرې وغواړو چې علت یې پیدا کړو چې جاپان څنګه دا موده لنډه ووهله چې په یوه صنعتي هېواد بدل شو، نو ځواب یې ښایي داسې وي:

صنعتي کېدنه یې په کرار او تدریجي ډول پیل شوه. لومړی ساده صنایع، وروسته لږې پېچلې، سپکې صنایع، منځنۍ ټکنالوژۍ، وربسې درنې او لوړې ټکنالوژۍ په کې رامنځ ته شوې. په ۲۰۰۵م. کا ل کې جاپان د (۴،۵) ټریلیونو ډالرو تولیداتو په ارزښت تر امریکا وروسته د نړۍ په اقتصادي ځواک کې دویم او په اسیا کې یې لومړی ځای درلود. که څه هم جاپان محدودې صنایع لري، خو د دولت په همکارۍ سره چې د پرمختللې ټکنالوژۍ په برخه کې پانګه اچونه کوي، جاپان د صنعت او تکنالوژۍ له پلوه یو مهم هېواد ګڼل کېږي. امریکا د ۲۲،۷٪ چین ۱۳،۱٪ سویلي کوریا په ۷،۸٪ سره د جاپان ډېر مهم سوداګریز شریکان دي او اوس جاپان په لنډه موده کې په چټکۍ سره د نړۍ په یوه پرمختللي هېواد بدل شوی دی.

د جاپان مهم صادرات، د حمل ونقل وسایل، موټرې، برېښنایي صنایع، ماشین الات، کیمیاوي صنایع، فولادي صنایع، غیر اوسپنیز فلزات، کشتۍ جوړونه، نساجي او نور دي.

دا هېواد څو نړیوال موټر جوړونکي شرکتونه، لکه، ټویټا، هنډا، سني، نیسان، میتسوبیشي او داسې نورې کمپنۍ چې معتبر مارکونه لري، خاوند دی.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړنۍ ډله دې دجاپان د تاریخ او دویم ډله دې د جاپان د صنعتي کېدنې پر لاملونو یو له بله سره خبرې وکړي او پایله دې په ټولګي کې ووایي.



## پوښتنې

۱ـ د جاپان لومړنی امپراتور څه وخت پر تخت کېناست؟

۲ـ د جاپان معاصر دوران له کومې تاریخي پېښې څخه پیلیږي؟

۳ـ جاپان په دویمه نړیواله جګړه کې د کومو هېوادونو په ګټه او پلوۍ په جګړې کې داخل شو؟

۴ـ د جاپان سوداګریز شریکان کوم هېوادونه دي؟

۵ـ د جاپان د لویو کمپنیو نومونه واخلئ؟



## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د جاپان د چټکې پرمختیا په اړه د ښوونکو او منابعو په مرسته معلومات تر لاسه او بیا دې په ټولګي کې ووایي.

# د شوروي اتحاد له منځه تلل



يو شمېر بهرني او داخلي عوامل چې د شوروي اتحاد د له منځه تلنې سبب شول، په لاندې توگه به ورسره آشنا شئ.

## الف: کورني لاملونه

په شوروي اتحاد کې مارکسيستي او لېنينستي نظام له ۱۹۱۷ـ ۱۹۹۱م. پورې سره له دې چې د سوسياليزم د تحقق لپاره ورته ډېرې هڅې وشوې، له منځه لاړ. د هغو نظريو پر بنسټ چې د مارکسېزم د پلويانو او د هغوی د مخا لفينو له خوا ځرگندې شوې، نو دا ترې جوتېږي چې د شوروي اتحاد سياسي، اقتصادي او ټولنيز نظام په دې ونه توانېد چې د روسيې د خلکو اړتياوې پوره کړي. د مارکسيستي نظرياتو ځخه په روسي انقلابي بڼه او د سياسي فرهنگ د دوام له امله داسې يو ترکيب رامنځ ته شو چې يو له بله سره يې هېڅ ډول هماهنگي نه درلوده. سره له دې چې روسيه يې په يوه لوی ځواک بدله کړه، خو د انسانانو له فطري خصوصيت سره د توپير له امله په پای کې له منځه تلو سره مخامخ شو.

د شوروي اتحاد اقتدار غوښتونکی سياسي نظام چې کمونيست گوند يې د کارگر د استازي په نامه پر

هېواد واکمن کړی و، له شدید کنټرول او د ډول ډول ټکولو او اختناق سره سره، په پای کې د میلیتونو د اعتراضاتو په وړاندې چې کلونه کلونه یې د مرکزي حکومت د واکمنۍ لاندې ژوند تېر کړی و، ټینګار ونه شو کړای او هغه پراخ ټولنیز بدلونونه، په ځانګړې توګه هغه زاړه فردي روشونه او وېشنه چې ټولنه ترې جوړه شوې وه او د کمونېست ګوند منشي تطبیقوله، د ۱۹۸۰م. د لسیزې بدلونونه یې چټک کړل چې په پای کې د میلیتونو د زندان ور پرانیستل شو.


ریګن او ګورباچوف

پر شوروي اتحاد حاکم نظام چې د کمونېزم د نظریو تر رهبرۍ لاندې په ځانګړې توګه د ستالین په وسیله رامنځ ته شو، پخپله د دې نظام د له منځه تلنې سبب و. داسې نظام چې پر اداري او اقتصادي چارو یې بشپړ امرانه کنټرول درلود، د ټیټو او منځنیو طبقو فردي ګټې له منځه وړلې او د انسان د فطرت ځانګړتیاوې یې نه منلې. د شوروي اتحاد د صنعتي لاس ته راوړنو سره سره یې د خلکو عادي ورځنۍ اړتیاوې نه شوې پوره کولای او هغه اقتصادي او انساني منابع یې چې درلودې، له هغوی څخه یې په پوځي برخو کې ګټه واخیسته.

د امریکایانو فشار او له پردیو څخه وېره چې په روسي ټولنه کې یې ریښه درلوده، د داخلي ناخوالو د پېټولو لپاره به یې په افراطي توګه ورته پاملرنه کوله. فدرالي نظام به ادعا کوله چې د ټولو میلیتونو او قومونو بشپړ حقوق په پام کې نیول کېږي، خو په عمل کې یې توپیر درلود چې دغه تبعیض په میلیتونو کې ناخوښي او نارضایتي رامنځ ته کړه. سره له دې چې

ګورباچوف ډېره هڅه وکړه چې دا تبعیض له منځه یوسي، خو بریالی نه شو، تر دې چې د نظام د له منځه تلنې زمینه په تدریج سره تیاره شوه.

په پای کې په ۱۹۹۱م. کال د شوروي سیاسي، اقتصادي او ټولنیز نظام سره د دې چې ۷۴ کاله یې ډېرې هڅې وکړې، خو د سوسیالېزم پر تداوم او عملي کېدنه بریالی نه شو په پایله کې له منځه لاړ.

## ب ـ بهرني لاملونه

د دويمې نړېوالې جګړې له پای ته رسېدو وروسته، سوړ جنګ پیل شو، ځکه په دې وخت کې کومه نړېواله جګړه رامنځ ته نه شوه. او لويو ځواکونو یو د بل پر ضد تبلیغات پیل کړل او تسلیحاتي سیالی پیل شوې او هر یوه هڅه کوله چې ورانوونکې وسله جوړه کړي. لوېديځو هېوادونو د امریکا په مشرۍ د کمونېزم د خپراوي پر ضد پراخه تبلیغات پیل کړل او په شوروي اتحاد کې یې کمونیستي نظام تخریباوه.

فضايي سیالی او رقابتونه هم د شوروي اتحاد د له منځه تلنې سبب ګڼل کېږي، ځکه چې د هرې فضایي بېړۍ لپاره په میلیاردونو امریکایي ډالر لګول کېده او د شوروي اتحاد لپاره د هرې مصنوعي سپوږمۍ جوړول او توغول ورته ډېر ګران تمامېده.

شوروي اتحاد افغانستان په ۱۹۷۸م کې اشغال کړ، شوروي اتحاد دا فکر نه کاوه چې دا جګړه به اوږده شي او د غیرتمنو افغانانو له داسې مقاومت سره به مخامخ شي. د روسانو تر یرغل وروسته د افغانستان خلکو او مبارزینو سره اسلامي او لوېديځو دولتونو مرسته کوله او شوروي اتحاد په دې جګړې کې ډېر لګښتونه وکړل چې د هغه کمزوری اقتصاد یې لا پسې کمزوری کړ. د شوروي اتحاد په له منځه وړنې کې ځاني تلفات هم له سترو عواملو څخه ګڼل کېږي، ځکه د ځوانانو وژنه او معیوب کېدنه د خلکو د کرکې سبب شوه او له افغانستان څخه د قواوو د ویستلو غوښتونکي شول. په پای کې شوروي اتحاد

په افغانستان کې ماتې وخوړه او خپل ځواکونه یې له افغانستان څخه بهر کړل.

پورتنیو کورنیو او بهرنیو لاملونو د شوروي اتحاد د له منځه وړنې لپاره مناسب شرایط برابر کړل چې حاکم نظام په خپلو ټولو هڅو سره په دې ونه توانېد چې مخه یې ونیسي چې په پای کې د کمونست گوند تر اوږده حاکمیت وروسته پر پنځلسو جمهوریتونو، شوروي اتحاد وپاشل شو. سوسیالیستي نظام له منځه لاړ او ډېرو جمهوریتونو خپله خپلواکي اعلان کړه.

## په ټولگي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړنۍ ډله دې د سوسیالیستي نظام پر ماهیت او دویمه ډله دې د شوروري اتحاد د له منځه تلو پر عواملو خبرې وکړي او پایله دې په ټولگي کې ووایي.

## پوښتنې

۱ـ د روسیې کارگري انقلاب په کوم کال کې رامنځ ته شو؟

۲ـ شوروي سوسیالیستي نظام په کوم کال کې له منځه لاړ؟

۳ـ په ۱۹۸۰م. لسیزه کې په شوروي کې کوم بدلونونه رامنځ ته شول؟

۴ـ شوروي نظام څو کاله دوام وکړ او څو جمهوریتونه یې لرل؟

۵- د افغانستان مسلمان ملت د شوروي او کمونیزم په نابودۍ کې څه ورنده درلوده په لنډه توگه یې ووایئ.

## له ټولگي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې له مشرانو او فرهنگي شخصیتونو څخه د شوروي اتحاد په له منځه تللو کې د بهرنیو لاملونو په اړه معلوما ت تر لاسه او بیا دې په ټولگي کې ووایي.

# د آلمان فدرالي جمهوريت




آيا پوهېږئ چې د آلمان جمهوريت څو ايالتونه او څه ډول سياسي جوړښت لري؟

د آلمان فدرالي جمهوريت د نړۍ د پرمختللو صنعتي هېوادونو له ډلې څخه دی. دا هېواد چې په اروپا کې پروت دی، په شمال کې له ډنمارك او بالتيک سمندرګي، ختيځ کې يې له پولنډ او چك جمهوريت، په سويل کې يې له اتريش او سويس او لوېديځ کې له فرانسې، بلژيك، لوګزامبورك او هالنډ سره پولې لري.

آلمان يو ډيموکرات فدرالي جمهوريت دی او شپاړس ايالاتونه لري. دغه ايالات کولای شي چې په ځينو چارو کې خپلواك عمل وکړي. آلمان له فرانسې او روسيې سره د جګړې پر مهال په ١٨٧١م. کې د يوه ملت په توګه متحد شو.

د دولت اجرايي قدرت د فډرالي صدراعظم سره وي. بوند سرات (فډرال شورا) صدراعظم ټاکي. جمهور رئيس د يو ګډې ناستې د بوندسرات او د ايالتي استازو(بوند سټاګ) د مساوي غړو په ګډون د پنځو کالو لپاره ټاکل کېږي. سره له دې چې په



انګلا مرکل د آلمان لومړۍ وزيره

۱۹۹۰م. کال کې برلېن پلازمېنه وټاکل شوه، خو د آلمان پارلمان، وزيران، جمهور رئيس او فډرال صدراعظم د بن په ښار کې اوسي.

د آلمان فډرالي جمهوريت د ملګروملتونو د سازمان، د شمالي اتلانتيک د تړون، د اوو هېوادونو له ډلې، د لوېديځې اروپا د پنځو هېوادونو د اتحاديې، د امنيت او همکاريو کنفرانس په اروپا کې د همکارۍ او هم د اروپايي اتحاديې د بنسټ ايښودونکو څخه دی.

تر امريکا او جاپان وروسته، آلمان د نړۍ دريم صنعتي ځواک دی. له دويمې نړېوالې جګړې څخه وروسته د آلمان اقتصادي ودې او پرمختګ ته د (آلمان اقتصادي معجزه) ويل شوې ده.

آلمان داسې يو هېواد دی چې ګڼ شمېر سياسي ګوندونه په کې فعاليت کوي چې مهم يې په لاندې ډول دي:

- سوسيال ډېموکرات ګوند ( سوسيالېست).
- ډېموکرات مسيحي ګوند (محافظه کار).
- سوسياليستي مسيحي ګوند.
- آزاد ډېموکرات ګوند (لېبرال).
- شين ګوند ( د چاپېريال ساتنه).

ـ سوسیالیزم ډیموکرات ګوند ( د ختیځ آلمان پخوانی کمونیستي ګوند).

آلمان په بهرني سیاست کې یوازې لوبغاړی نه دی. د آلمان سیاست د هغه بلوك تقویت دی چې (لویدیځ) ورته ویل کیږي. آلمان له فرانسې سره ځانګړی نږدېوالی لري. د امریکا له متحده ایالاتو سره د آلمان نږدېوالی او همکاري د هغه د بهرني سیاست یو بل رکن دی. د آلمان بهرنی سیاست په ټوله نړۍ کې د سولې د ټینګښت، د درېمې نړۍ سره د دوستانه اړیکو د پراختیا او د هغوی د اقتصاد د ودې، او د بشر د حقوقو د رعایت پر ستنو ولاړ دی.

آلماني ژبه د هندو جرمن د ډلې یوه برخه ده. دا ژبه د ډنمارکي، ناروېژي، سویډني، هالنډي او همدارنګه د انګلیسي ژبې سره په کورنۍ کې شریکه ده. په آلمان کې په مختلفو لهجو خبرې کیږي. د آلمان د خلکو له اغلبو لهجو څخه کولای شو چې محلي مبدایې ومومو. په لومړیو کې د اوسني آلمان په ځمکه کې مختلف قبایل لکه، فرانکانو، زاکس، شوابان، او بابریان اوسېدل. نن ورځ دغه قبایل په خپله لومړۍ بڼه نشته، خو رواجونه او لهجې یې د سیمې په مختلفو ډلو کې ساتلي دي.

د آلمان مهم صنایع الکترونیکي وسایل، کیمیاوي مواد، منسوجات، غذایي او ترانسپورتي وسایلو څخه عبارت دي. همدارنګه آلمان د ډېرو د سکرو ذخیرې، د اوسپنې، مسو، قلعي، نکل، سپینو زرو او مالګې کانونه لري، خو د آلمان د صنعت لپاره بسنه نه کوي او وارداتو ته یې ډېره اړتیا لري.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړنۍ ډلې دې د آلمان د موقعیت او دویمه ډله دې د آلمان د پارلماني نظام په اړه په خپلو کې خبرې وکړي او پایله دې په ټولګي کې ووایي.

## پوښتنې

۱ـ د آلمان صدراعظم څنګه ټاکل کېږي؟

۲ـ د آلمان پارلمان څو مجلسه لري؟

۳ـ ختیځ او لوېدیځ آلمان په کوم کال کې سره یو ځای شول؟

۴ـ د آلمان د مهمو ګوندونو نومونه یاد کړئ؟

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د آلمان د اقتصاد او ژبې په برخه کې له خپلو ښوونکو او فرهنګي شخصیتونو څخه معلومات تر لاسه او بیا دې په ټولګي کې ووایي.

# د فرانسې جمهوریت



فرانسه یو اروپایي هېواد دی، چې ډېر لرغونی او پخوانی تاریخ لري، چې په دې لوست کې به په لنډه توګه ورسره آشنا شئ.

فرانسه د اروپا په لوېدیځ کې پرته ده چې شمال لوري ته یې د مانش سمندرګي، سویل ته یې د مدیترانې سمندرګي، ختیځ ته یې بلجیم، سویس، ایټالیه، لوکزامبورګ او موناکو، لوېدیځ ته یې د بیسکای خلیج او سویل ختیځ ته یې اسپانیا پروت دی.

د دې هېواد اوسېدونکي فرانسوي سپین نژاده دي چې د فرانسې ۹۳٪ وګړي تشکیلوي. د دې هېواد ۹۲٪ خلک د عیسوي دین پیروان دي. همدارنګه ۹۷٪ اوسېدونکي یې په فرانسوي ژبه خبرې کوي.

فرانسه داسې یو هېواد دی چې د لرغوني تاریخ په لرلو سره له میلاد څخه پخوا د ګل Goul په نامه یادېده. سلیتیک، باسک او جرمنیان په کې اوسېدل. د ۱۲۵ ق. م. په شا وخوا کې رومیانو پر ګل حمله وکړه او د مدیترانې د سمندرګي شاوخواوې یې ونیولې.

په شپږمه او اوومه زیږدیزه پېړۍ کې په ګل کې مختلفو شاهانو واک درلود او خونړۍ جګړې یې تر منځ پېښې شوې. هغه تمدن چې رومیانو یې بنسټ ایښی و، له خطر سره مخامخ شو.

په ۷۷۱ میلادي کې شارلمان د فرانسې پاچا شو او د واکمنۍ په ۵۰ کلنه موده کې یې فرانسې ډېر ځایونه ونیول. په ۷۷۴م. کال کې یې ایټالیه ونیوله، جرمني قبایل یې مات او د اسلام له سربښندونکو سره یې چې د فرانسې تر سویله رسیدلي و کلکې جګړې وکړې. په ۸۰۰ م. کال کې د مسیحیانو رهبر ( پاپ، ) د روم د امپراطورۍ تاج د فرانسې د حکمران شارلمان پر سر کېښود. د شارلمان د واکمنۍ په پای کې د هالنډ، بلجیم، المان، سویس، اتریش، چک، سلواک، هنګري، یوګوسلاویا، ایټالیا او د اسپانیا سیمې د فرانسې په واک کې وې.

تر لسمې میلادي پېړۍ وروسته د فرانسې د شاهانو واک په تدریج سره ډېر شو. د کلیسا رهبران له شاهانو سره یو ځای شول. سوداګري پراخه شوه او په صلیبي جګړو کې د فرانسې ونډه ډېره شوه چې د فرانسې اعتبار یې په لوېدیځ کې زیات کړ.

په ۱۳مه میلادي پېړۍ کې فرانسه په اروپا کې یو قدرتمند هېواد ګڼل کېده، سره له ډېرو جګړو چې له انګلستان سره یې وکړې، په فرانسه کې مدني او قضایي اداري جوړې او څلورم فلیپ د هنر، فلسفې او کلتور په برخه کې غوره خدمتونه وکړل.

د څوارلسم لوېي واکمنۍ پر وخت د فرانسې کلتور ډېر پرمختګ وکړ، خو د پنځلسم لویي پر وخت فرانسه له ناورین سره مخامخ شوه او په تدریج سره د فرانسې لوی انقلاب ته لاره اواره شوه.

په ۱۷۸۹ میلادي کې د فرانسې لوی انقلاب بري ته ورسېد چې د فرانسې او اروپا په تاریخ کې نوی څپرکی پرانیستل شو. د فرانسې اساسي قانون تدوین شو. ولسي جرګې په کار پیل وکړ. د باستیل مشهور زندان پرانیستل شو او انقلابیونو ونیو، بندیان آزاد او شپاړسم لویي اعدام شو. د بشر د حقوقو نړیواله اعلامیه اعلان شوه. شاهي نظام ړنګ او د فرانسې د جمهوریت بنسټ کېښودل شو.

په ۱۸۰۴ میلادي کې ناپلیون د فرانسې د نظام مشر شو او د وفادارۍ لوړه یې وکړه چې د نوموړي د حاکمیت پر وخت فرانسې ډېر ځایونه ونیول.

په معاصر وخت ۱۹۴۰میلادي کې فرانسه الماني ځواکونو ونیوله، خو د متفقینو د فشار له امله یې په ۱۹۴۴ میلادي کال کې له فرانسې بېرته شا تګ وکړ. تر دویمې نړیوالې جګړې ۱۹۴۵م.کال وروسته فرانسې په تدریجي توګه خپلې مستعمرې له لاسه ورکړې. لومړی سوریه، وروسته لیبیا، لږ وروسته

تونس، المغرب، مدغاسکر، ، وېتنام، لاوس، او کمبودیا تر خونړیو جګړو په ترڅ کې په دې وتوانېدل چې خپلواکي تر لاسه کړي. په ۱۹۶۲ میلادي کال کې ورستنی افریقایي هېواد الجزایر خپله خپلواکي تر لاسه کړه او د فرانسې څلورم جمهوریت له منځه ولاړ.

په ۱۹۶۰ م. کال کې فرانسې خپل لومړنی اټومي بم د افریقا په دښته کې وازمایه او په چټکۍ سره یې د پرمختګ لاره ونیوله. نن ورځ فرانسه د جرمني او نورو اروپایي هېوادونو تر څنګ د اروپا د وحدت او یووالي لپاره هڅه کوي.

د فرانسې جمهوریت ۲۲ ولایتونه او ۹۶ ولسوالۍ لري. د فرانسې د نفوس ٪۷۵ خلک په ښارونو او ٪۲۵ یې په کلیو کې اوسېږي. په فرانسه کې جمهور رئیس د خلکو له خوا د پنځو کالو لپاره ټاکل کېږي.

په فرانسه کې صدراعظم د ګوندونو د ائتلاف له لارې چې په پارلمان کې ډېرې چوکۍ تر لاسه کړي، ټاکل کېږي. د فرانسې پارلمان دوه جرګې لري، لومړۍ ولسي جرګه National assembly چې ۵۷۷ غړي لري، چې د خلکو له خوا ټاکل کېږي او د کار موده یې پنځه کاله ده. دویم د مشرانو جرګه Senate ده چې ۳۲۱ کسه غړي لري. د مشرانو د جرګې د غړیو انتخاب د یوه انجمن له خوا چې Electoral college نومېږي، د ۹ کالو لپاره ټاکل کېږي. په فرانسه کې ولسي او مشرانو جرګه هر یو خپل مستقل رئیس لري. جمهور رئیس کولای شي چې ولسي جرګه منحله کړي. د مشرانو جرګې رئیس د دې واک لري چې د جمهور رئیس په نه شتون کې د هغه چارې سر ته ورسوي.

په فرانسه کې ګڼ شمېر ګوندونه فعالیت کوي. د بېلګې په توګه د فرانسې کمونیست ګوند، راډیکال چپ ګوند، جمهوري غوښتونکي، د فرانسې جنبش، ملي جبهه، ملي غورځنګ، د اصلاح غوښتونکو جنبش، سوسیالیست ګوند او نور.

فرانسه د نړۍ د اوو صنعتي هېوادونو له جملې څخه ده . پرمختللی اقتصاد لري او ټولو اقتصادي سکتورونو یې په متوازي ډول پرمختګ کړی دی.

نن ورځ په فرانسه کې د اقتصاد په برخه کې د دولت ونډه لږېږي، خو له دې سره هم د فرانسې دولت د اوسپنو د کرښو،برېښنایي تاسیساتو، هوایي کرښو او مخابراتو په برخه کې پانګه اچونه کوي. غواړي

چې په بنسټيزو اقتصادي پروژو کې چې عام المنفعه بڼه لري، خپل شتون خوندي وساتي.

د صنعت په برخه کې فرانسه زراعتي ماشين الات، د اوسپنې پټلۍ، ميراژ، جګوار، ترانسال، کانکورد، ايربس، الوتکې، هيلوکپترې، موټرې، د ترانسپورتي وسايلو پرزې، د برېښنا د توليد ټکنالوژي، سامان الات، ساختماني وسايل، کمپيوټر، راډيو، تلوېزون، کېمياوي مواد، ځمکني وسايل، عطرونه او نور توليدوي.

فرانسه د هغه اروپايي هېوادونو له ډلې څخه ده چې په ۱۹۹۹ م. کال کې يې د اروپا پولي واحد (ايرو) د خپل هېواد د پولي واحد په توګه منلی دی.

## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړنۍ ډله دې د فرانسې د تاريخي سابقې په برخه کې او دويمه دې د فرانسې د موقعيت، نفوس، مذهب او د فرانسې د خلکو د ژبې په برخه کې يو له بله سره خبرې وکړي او پايله دې په ټولګي کې ووايي.

## پوښتنې

۱ـ په تېرو وختونو کې فرانسه په کوم نامه يادېده؟
۲ـ په اتمه ميلادي پېړۍ کې د کوم واکمن پر وخت فرانسې ډېر اروپايي هېوادونه ونيول؟
۳ـ د فرانسې لوی انقلاب په کوم کال کې پېښ شو؟
۴ـ په دويم نړيواله جګړه کې فرانسه د کوم هېواد ځواکونو ونيوله؟
۵ـ د دويمې نړيوالې جګړې وروسته فرانسې خپلې کومې مستعمرې له لاسه ورکړې؟

## له ټولګي څخه د باندې فعاليت

زده کوونکي دې د فرانسې د لوی انقلاب په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# د انګلستان شاهي دولت




په دې لوست کې به د انګليستان د تاريخ او د دې هېواد نورو مهمو مطالبو سره پېژندګلوي تر لاسه کړئ.

انګلستان د انتلانتيک سمندرګي په شمال کې پروت دی. په سويل کې د انګلند له کانال، په ختيځ کې له شمال سمندرګي او په لوېديځ که له ايرلنډ سره ګډه پوله لري.د طبيعي جوړښت له پلوه انګلستان پر درېوو برخو وېشل کېږي.

**لومړی په شمال کې د سکاټلنډ سيمه**: دا سيمه د انګلستان په شمال کې موقعيت لري او غرنۍسيمه ده.

**دويم شمالي ايرلېنډ يا اولستر** : د اولستړ سيمه د ايرلېنډ د جزيرې په شمال ختيځ کې واقع ده چې مرکز يې بلفاسټ نومېږي.

**دريم د انګلنډ او وېلز سيمه ده**: انګلنډ او وېلز د انګلستان د جزيرې سويلي برخه جوړوي.

انګلستان داسې يوه ځمکه ده چې له وړو او لويو ټاپوګانو څخه جوړه شوې ده او په همدې توګه ځينې انګلستان ته د ټاپوګانو هېواد وايي.

د انګليستان د ۷۲٪ خلکو دين مسيحي دی. ۲۵٪ خلك يې د نورو دينونو پيروان دي.

له اداري پلوه انګلستان په څلورو لويو ولايتونو انګلېنډ، وېلز، سکاټلېنډ او شمالي ايرلېنډ وېشل شوی دی.

د انګلیسانو ځمکه له پخوا څخه د اوسېدو وړ وه. د یخچال تر دورې وروسته دوه بېلې قبیلې له خپلو ځارویو سره یو ځای له اوسنی اسپانیا څخه انګلېنډ یا انګلیستان ته مهاجرت وکړ. لرغون پېژندونکي دا قبیله د ایبري په نامه پېژني.


ډیوید کمرون، د انګلستان لومړی وزیر

په ۶-۴ ق .م پېړیو کې د سلت قومونه د ځمکو او ځارویو د تر لاسه کولو لپاره له اسپانیې څخه انګلېنډ ته راغلل او ایبریان یې له هغه ځایه وشړل او پر انګلېنډ باندې د سلت د قومونو اخرنی یرغل په ۷۵ ق.م کې تر سره شو.

له میلاد څخه پنځه پنځوس کاله مخکې سزار ژولیوس د ځمکو د نیولو په هیله پر انګلېنډ حمله وکړه، خو د رومیانو یرغلونه په ۴۳ میلادي کې پر انګلېنډ سختې شوې.

په پای کې په پنځمه میلادي پېړۍ کې د رومیانو قدرت کمزوری شو، څکه نود جرمني له خاورې د انګلو او ساکسون قومونو پر انګلېنډ یرغل وکړ. د انګلو او ساکسون قومونو په ۸۲۹ میلادي کې د انګلېنډ یوالي تامین کړ. او اوسېدونکي یې پر یوه پاچا راضي شول. وروسته جرمنانو پر انګلېنډ حمله وکړه او له کلک مقاومت سره مخامخ شول او یوازې یې د انګلېنډ ختیځي او شمالي برخې ونیولې.

د پېړۍ په لومړیو کې د انګلېنډ پاچاه یو شمېر مدني او سیاسي حقوق په رسمیت وپېژندل او داسې فرمانونه یې صادر کړل چې له ننیو مدني بنسټونو سره یې ورته والی درلود. اشرافو، فیوډالانو او روحانیونو خپل ملاتړ له پاچا څخه اعلان کړ. د اشرافو د جرګې تر څنګ د عوامو جرګه هم جوړه شوه. په ۱۴۸۵ م کې هانري د تیودور له کورنۍ څخه پر انګلېنډ حاکم شو. د تیودور شاهانو پر انګلېنډ ۱۲۰ کاله حکومت وکړ. ډېر دیني او ټولنیز اصلاحات یې رامنځ ته کړل. د روم له کلیسا څخه یې خپله کلیسا جلا کړه او ایرلېنډ یې له انګلیستان سره یو ځای کړ.

په ۱۵۵۸ م کې ملکه لومړۍ الیزابت د انګلیستان حکمرانه شوه او انګلیستان یې د خپل وخت یو اقتصادي او پوځي ځواک وګرځاوه.

انګلستان د پېړیو په اوږدو کې د ډېرو تاریخي پېښو ژورو او دوه معاصرو نړیوالو جګړو سره مخامخ شو. د دویم نړیوا ل جنګ تر پای وروسته په ۱۹۴۹م. کې انګلستان او امریکا د کمونیستانو د ورځ په ورځ ډېرېدونکي قدرت د مقابلې لپاره د شمالي اتلانتیک (ناټو) پیمان رامنځ ته کړ او په ۱۹۵۷ م. کې یې

خپل لومړنی اټومي بم وازمایه او په ۱۹۷۶م. کې یې د اروپا د ګډ بازار غړیتوب تر لاسه کړ.

د انګلستان حکومت مشروطه شاهي constitutional Monarch دی او د نړۍ د نورو هېوادونو په څېر تصویب شوی واحد قانون نه لري، خو اساسنامې، لوایح او د ولسي جرګې پرېکړې لري چې د اساسي قانون په څېر کار ترې اخیستل کېږي. ځکه نو ویلای شو چې د انګلیسانو اساسي قانون داسې یو ټولګه ده چې د سیاسي شرایطو سره سم په کې بدلونونه راتلای شي او ولسي جرګه یې ځینې برخې لغوه یا نوې کولای شي.

د انګلیس پارلماني نظام د کوم تدوین یا ترتیب شوي قانون په وسیله منځ ته نه دی راغلی، بلکې د پېړیو تدریجي تکامل بلل کیږي.

په انګلیستان کې پاچاهي میراثي ده، سره له دې چې په تېرو څلورو لسیزو کې ولسي حاکمیت، د اولسي جرګې له لارې د سلطنتي مقام امتیازات او قدرت محدود او را لږ کړی، خو بیا هم شاهي کورنۍ ډېر امتیازونه لري.

په نني انګلیستان کې ملکه د یو شمېر صلاحیتونو په لرلو سره د ملي وحدت د ساتنې، د دولت د رهبرۍ، د نظام د تنظیم او د نهایي پرېکړې سمبول ګڼل کېږي. د قوانینو توشیح، د سولې او جګړې د حکم صادرول، د حکومتونو په رسمیت پېژندل، د قراردادونو او کنوانسیونونو قبلول یا رد ول، ولسي جرګه ځنډول او د صدراعظم په مشوره یې رد ول، لویو او مهمو سیاسي، قضیو او ملکي دندو ټاکنه، د اشرافي القابو توزیع او د صدراعظم ټاکل. د کابینې وزیران د صدراعظم په غوښتنه د ملکې لخوا ټاکل کېږي. ډېر انګلیسي وزیران د ولسي جرګې غړیتوب لري او پاتې یې د مشرانو جرګې غړي وي.

د انګلیستان پارلمان دوه جرګې لري. لومړۍ ولسي جرګه چې ۶۵۹ غړي لري چې ټول یې د پنځو کالو لپاره د ټولټاکنو له لارې ټاکل کېږي. دویم د مشرانو جرګه ده چې ۵۰۰ کسه اشراف مادام العمر Life Peers غړي لري. دغه ارګان درې اصلي څانګې لري. ملکه، د اشرافو جرګه او د عوامو جرګه چې هر یو یې خپلواک دي. د قانون د ترتیب او تدوین په وخت کې د درې واړو توافق لازمی او حتمی ګڼل کېږي. انګلیسي پارلمان په هېواد کې د قانون جوړونې ډېر لوړ ارګان ګڼل کېږي.

په انګلیستان کې مختلف سیاسي ګوندونه فعالیت کوي، چې د بېلګې په توګه د متحد محافظه کار ګوند

Conservative and Unionist Party، ډیموکرات متحد گوند Democratic Party Unionist، کارگر گوند Labor Party د ویلز گوند Party of Wales او د سکاټلینډ ملي گوند Scotland National Party نوموړي یادولا ی شو.

انگلیستان د نړۍ د لویو صنعتي هېوادونو څخه گڼل کېږي چې مهمې صنایع یې لویې او کوچنۍ فابریکې، مختلف ماشین الات او د هغو پرزې، اتومات سامان الات، نقلیه سامان الات، الوتکې، لویې او وړې بېړۍ، کرنیز وسایل، د اورگاډي پټلۍ، د انرژۍ تولید او د هغې تاسیسات، د مخابراتو وسایل، کېمیاوي او غیر کېمیاوي توکي، ساختماني او نور وسایل دي.

انگلیستان د ۱۹۴۵م. کال د اکتوبر په ۲۴مه د ملگرو ملتونو د امنیت شورا غړیتوب تر لاسه کړ او د ویتو حق لري.

## په ټولگي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړنۍ ډله دې په انگلینډ کې د لومړنیو اوسېدونکو په اړه او دویمه ډله دې د انگلیستان د اداري تشکیلاتو او ټاپوگانو په اړه یو له بله سره خبرې وکړي او د هغې پایله دې په ټولگي کې ووایي.

## پوښتنې

۱ـ انگلیستان په څو ولایتونو وېشل شوی دی؟

۲ـ ۱۳مه میلادي پېړۍ کې انگلستان له کومو بدلونونو سره مخ شو؟

۳ـ په انگلیستان کې ملکه کوم واک او صلاحیتونه لري؟

۴ـ په انگلیستان کې صدراعظم کوم واکونه لري؟

۵ـ د انگلیستان د مهمو صنایعو نوموړه یاد کړئ؟

## له ټولگي څخه د باندې فعالیت

زده کوونکي دې له فرهنگي شخصیتونو او منابعو څخه د انگلیستان د پارلماني نظام په اړه معلومات تر لاسه او په ټولگي کې دې ووایي.

# د څلورم څپرکي بیاکتنه

د دولسم ټولګي د تاریخ درسي کتاب په څلورم څپرکي کې د شلمې پېړۍ د مهمو پېښو تر سرلیک لاندې ځینې مطالب او موضوګاني تالیف شوي دي لکه: لومړۍ او دویمه نړیواله جګړه او د هغوی لاملونه، د ملګرو ملتونو جوړښت، په یو صنعتي ځواک د جاپان اوښتنه د پخواني شوروي ټوټې کېدل، د آلمان، فرانسې او انګلیس سیاسي جوړښت چې په دې کتاب کې د امکان تر حده پورې دغه عنوانونه په پام کې نیول شوي دي چې د ۱۹۱۴- ۱۹۱۸ او ۱۹۳۳- ۱۹۴۵میلادي کلونو تر منځ اقتصادي، سیاسي ناورینونه پکې څېړل شوي او ګټور معلومات وړاندې شوي دي. همدارنګه هغه زیانونه، ناوړې اغېزې، او بشري تلفات چې د دوو نړیوالو جګړو رامنځ ته کړي پکې انعکاس مومي او هم په دې توګه لنډ معلومات د آلمان، فرانسې او انګلیس د تاریخ، فرهنګ، ژبې او سیاسي جوړښتونو په اړوند وړاندې شوي دي. بله موضوع چې د زده کونکو ذهن ته وده ورکولای شي: د پخواني شوروي ټوټې کېدل دي چې د قوي حاکمیت په درلودو سره ټوټه کېږي. بل په لنډه موده کې په یو صنعتي ځواک باندې د جاپان بدلېدل، همدارنګه د ملګرو ملتونو جوړښت د دویمې نړیوالې جګړې وروسته چې څرنګه نړیوالې اړیکې تنظیم کېږي او له انساني فاجعو او کړلیچونو څخه مخ نیوی کوي. دغه ټول مطالب زده‌کوونکو ته د انګیزو په را مینځ ته کولو او د مهارتونو په لوړوالي کې مرسته کوي.